# څرک

شپاړسم کال، دریمه، پرلپسي ۱۱۰مه ګڼه،
حوت۱۳۹۷ل، رجب المرجب۱۴۴۰هـ ق، مارچ۲۰۱۹م

## بادار څرنګه خپل غلام ورته !!




## دوی ولي

## مسیحي تروریستان نه ګڼل کیږي ؟؟

## هو! طالبان به دفاتحینو په شکل راځي!

## طالبه مبارک شه، تا وګټله!

- ❖ اشرف غني ولې زموږ د تاریخ سپکاوی کوي؟
- ❖ ... چا بازار موندلی نه دی !
- ❖ د پاکستان او هند ترمنځ د تربګنۍ او دښمنۍ تاریخي شالید
- ❖ جنایت پیشه گان حتما به کیفر اعمال می رسند
- ❖ پول مالیه بر کریدت کارتهای شما به کدام سوراخ میرود؟





د دوحې له غونډې نه، د طالبانو پټې ګټې...!!




**علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه**


شپاړسم کال، دریمه، پرلپسې ۱۱۰مه ګڼه،

حوت۱۳۹۷ل، رجب المرجب۱۴۴۰هـ ق، مارچ۲۰۱۹م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګڼون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :


srak_111@yahoo.com

## لړلیک



بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# بادار څرنګه خپل غـــلام ورته !!

په دې کې هېڅ شک نشته چې د اسلامي امارت او امریکا ترمینځ د خبرو او مذاکراتو وروستی پړاؤ چې د قطر هېواد په دوحه ښار کې سر ته ورسید او خبره یې د حتمي توافقاتو د لاسلیکولو په پوله ودروله ؛ د سولې اړوند دغو پرمختیاوو او جریانونو د کابل د مزدور رژیم د جعلي مفکرینو ، بې سېواده چارواکو او اجرتي خیاطانو په ککریو کې سرې لمبې بلې کړې او حواس یې له لاسه ورکړي دي .

په دغو اوړدو مذاکراتو کې په دوه و مهمو ټکو چې یو یې له افغانستان څخه د ټولو امریکایي عسکرو وتل ، او بله د افغانستان له خاورې نړۍ او امریکا ته د خطر او ضرر نه پېښېدل وو ؛ چې پایله کې یې دواړه لوري تقریبا توافق ته رسیدلي او مسوده یې هم چمتو شوې ده .

د کابل رژیم مکرجن چارواکو ټولې نړۍ ته چیغې او نارې ووهلې ، د سیمې او ګاونډیو هیوادونو دروازې یې په مکرر ډول وټکولې ، ترڅو له طالبانو سره د سولې په خبرو کې هغوی ته هم د ګډون کولو اجازه او زمینه برابره شي ؛ مګر د اسلامي امارت د برحقې او منطقي تګلارې او کامیابې دیپلوماسۍ له کبله د غلامۍ طوق په غاړه کې اچونکو غلامانو او د افغان ولس د غلیمانو دغه ټولې هلې ځلې او حربې نامراده او هیڅا ورته ددوه توته ارزښت هم ورنکړ .

کله چې د کابل رژیم ډالر خواره ګوډاګیان په دې پوه شول چې د سولې اړوند د روانو مذاکراتو مخته د خنډ اچولو نورې ټولې لارې چارې وربانديې بندې او هېڅ یې ترلاسه نشو کړای نو ( ع او غ) د ملي امنیت سلاکار حمدالله محب امریکا ته ولېږه ؛ ترڅو د سولې په روانو خبرو مخې ته خنډ جوړ کړي او د امریکایي سیاستوالو شکوک او بې باوري راوپاروي

حمدالله محب چې د چوکۍ او قدرت په خاطر یې خپل حواس او عقل له لاسه ورکړی وو او د خپل رژیم راتلونکی یې پرته د امریکایي هنداري په بل هېڅ څه کې نه ښکارېد ؛ نو مخامخ یې د امریکا د مذاکراتي پلاوي په مشر ( ځلمي خلیلزاد) توندې نیوکې شروع کړې او پخپلو نیوکو کې یې دا څرګندونه وکړه چې خلیلزاد د سولې د پروسې له لارې ځان قدرت ته رسول غواړي .

امریکایان چې نور له خپلو دغو تالي څټو څخه د استفراق ترحده راغلي ؛ د حمدالله محب په دغو څرګندونو ښه پلمه په لاس ورغله او په ټولو دیپلوماتیکو نورمونو ورتېره شوه او د کابل د شړیدلي رژیم د ملي امنیت سلاکار یې په امریکا کې د بهرنیو چارو وزارت ته احضار ، د هغه ټولې خبرې یې ور رد کړې او دا خبره یې ورته واورله چې ته د امریکا غلام او مزدور یې! ته په کوم جرئت ځانته دا حق ورکوې ؛ چې مونږ یعنې خپل بادار ته لار راوښایې او نیوکې راباندې وکړې !!؟

امریکایانو د محب په دغه سپکاوي اکتفا ونکړه او ورته یې وویل ؛ چې ډېر ژر له امریکا څخه ووځه او چې بیا هیڅکله هم امریکا ته را ونه ګورې .

ع او غ ددې پرځای چې امریکا ته د خپل لیږل شوي سلاکار په رټل شوي او سپک شوي حالت امریکا ته شکایت وکړي او یا په کابل کې د امریکا سفیر ته خپل احتجاج لیک وسپاري ؛ برعکس یې په خپل سلاکار خوله پرانیستله چې خبرې یې غیر مسؤلانه وې او ممکن له همدې امله له دندې هم لیرې کړل شي .

---

حقیقت دا دی ؛ چې د الله تعالی له غلامۍ (بندګۍ) پرته د نورو خلکو په غلامۍ کې انسان په دنیا او آخرت له همداسې ذلالت ، رسوایۍ او شرمندګۍ سره مخ کیږي .

# هو! طالبان به د فاتحينو په شکل راځي!!

تېره ورځ له شمشاد تلويزون سره د اسلامي امارت د وياند ښاغلي ذبيح الله مجاهد صاحب مرکه ډېره عمده ، هر اړخيزه او مبهمو پوښتنو او گونگوسو ته ځوابوونکې وه.

مجاهد صاحب د مرکې په اوږدو کې يولړ مهمو او حساسو پوښتنو ته ځوابونه وويل ؛ چې څو کرښې يې په لاندې ټکو کې ستاسي مخته اېښودل غواړو.

۱) امريکايانو ته اجازه نه ورکوو ؛ چې پر داخلي چارو زموږ سره بحث وکړي ، موږ اوس يوازې له هغوي سره د امريکايي ځواکونو پر وتلو باندې خبرې کوو.

۲) د افغانانو سره شخړې بايد د خبرو له لارې حل شي ، او د کابل اداره د امريکايانو د گټو لپاره جوړه شوې، هغه زموږ مقابل جهت نه دی.

۳) د اشغال حاميان د افغانانو سره په جگړه کې ښکېل دي او افغانانو وژلي دي ، چې هر څومره وژل شوي ، شمار يې مهم نه دی ـ

۴) د اسلامي ارزښتونو په چوکاټ کې دننه مطبوعاتي ازادي ، مدني بنستونه او سياسي جوړښتونه وغيره به پخپل حال پاتې وي ؛ خو که د افغانستان او ديني ارزښتونو مخالف وي ، هغه به له منځه وړل کيږي.

۵) طالبان ددې مستحق دي چې د فاتحينو په توگه به راځي ځکه چې تېر ۱۸ کاله يې د هيواد د ازادۍ څخه دفاع کړې ده.

لنډه دا چې له شمشاد تلويزون سره د ښاغلي ذبيح الله مجاهد صاحب مرکه که په دقيق او منصفانه زاويې او د خپلواک ضمير له عينکو ورته وکتل شي ؛ نو دا حقيقت به ورومرو مخې ته راشي چې د افغانستان اسلامي امارت اساس ، تگلاره ، مبارزه او لرليد له څومره تاريخي او افغاني عظمت څخه ډک او له ديني فهم څخه سرچينه اخلي.

اتلس کاله اسلامي امارت په يواځې ځان د امريکا او ۴۹ اشغالگرو هېوادونو سره مقابله وکړه ، د هغوي ډول ډول پراخې او بې رحمې ستراتيژۍ يې شنډې او دفن کړې ، مغرور جنگي ماشين يې ورته ناکاره او خجل کړ ، د يوې احصائيې له مخې يونيم ټريليون ډالر يې د طالب د کمزوري کولو او تسليمولو په نيت ولگول ، خو لله الحمد طالب يې يو لويشت هم په پوځي ميدان کې وروسته او پرشا نکړای شو.

د تاريخ په اوږدو کې نه ده ثابته شوې چې مغروره امريکا دې له کوم هيواد او جهت سره دومره اوږده مذاکرات ترسره کړي وي چې صراحتا پکې د امريکا افتضاح او تزلزل ښکاري.

خو دا چې نن امريکا له طالب سره د خبرو اترو مېز ته ناسته ده او په هغه طرحه او نقش باندې مذاکرات پر مخ ځي ؛ کوم چې د افغان ميړني او مجاهد ولس ارزښتونه او مصالح يې ايجاب کوي ؛ له شک پرته د هغه رېښتيني او سرښندونکي مقاومت پايله او ثمره ده چې اسلامي امارت په تش لاس پيل او په بېسارو قربانيو او فداکاريو يې اوسنۍ فاتحانه مرحلې ته ورساوه.

نو اوس د ښاغلي ذبيح الله مجاهد صاحب د مرکې هغې کرښې ته په ډېر افتخار او وياړ ورگرځو او بدرگه کوو يې چې " هوکې! طالب حق لري ، د فاتحينو په توگه راشي " ځکه چې اتلس کاله يې د امريکا او ورسره د ۴۹ اتحادي اشغالگرو هيوادونو ټولو ستمونو ، جفاوو او تجاوزاتو ته په ميړانه ځواب ووايه او د هيواد له لويشت لويشت حريم او حرمت څخه يې دفاع اوساتنه وکړه. (له الاماره ويب پاڼې څخه په مننه)




# **مجاهدینو** ته مې پیغام دا دی چې **الله تعالی په سیاسي او نظامي ډګر کې کامیابي درکړه**؛ نو چې **غرور او تکبر ونه کړئ، عاجزي** وکړئ! **د الله تعالی شکر اداء** کړئ او **د قدرت د هوس** پرځای د **اسلام او اولس** د خدمت فکر خپل کړئ

ترتیب: م. جمیل باور

محترم ملا عبدالغني برادر _داسلامي امارت سیاسي مرستیال

**د قطر هیواد کې د امریکایي پلاوي او اسلامي امارت د مرکچیانو تر منځ د پنځم پړاو له اوولس ورځنیو خبرو وروسته د اسلامي امارت د سیاسي مرستیال ملا عبدالغني برادر سره د الاماره ستوډیو لخوا د ترسره شوې مرکې لیکلې بڼه:**

**پوښتنه: محترم ملا برادر اخند، د اسلامي امارت سیاسي مرستیال! تاسو په جریان کې یاست او خپله حاضر یاست، چې د تېرو اوولسو ورځو راهیسې د قطر مرکز دوحه کې د مخالف لوري سره مذاکرات روان وو او د مارچ په دولسمه پای ته ورسېدل، په دې اړه که خپل معلومات راسره شریک کړئ!**

ځواب: بسم الله الرحمن الرحیم. الحمدلله وکفی والصلاة والسلام علی رسوله المجتبی وبعد:

مذاکرات ښه و، تر ډېره حده پرمختګ وشو، امید شته چې لا ښه پرمختګ ته لاره هواره کړي او الله تعالی په افغانستان کې امن او اسلامي نظام راولي. او زموږ ملګري هم الحمدلله تر خپل هغه موقف نه دي، چې څنګه زموږ په زړونو او فکر کې و. الله تعالی دې په اینده کې هم دا توان او طاقت راکړي چې له هر دښمن سره په داسې نقشه خبره وکړو چې خپل موقف، اصول او خپل قانون مو په لاس کې نیولی وي. او د خپل اسلامي شرعي نظام لوري ته په هر وخت کې ژمن یو.

**پوښتنه: له دې مذاکراتو څومره تمه لرئ؟**

ځواب: ان شاءالله تمه خو ډېره لرو؛ ځکه چې دا ځل داسې خبرې وشوې، چې ان شاءالله راتلونکو خبرو ته زمینه او د حل لاره برابره شوې ده. تمه مو دا ده چې اسلامي نظام حاکم شي، استقلال ترلاسه کړو، خارجي قوتونه ووځي او هیوادوال مو د ورونو غوندې ژوند وکړي.

**پوښتنه: محترم ملابرادر اخند! دا چې اوس اسلامي امارت په یو ښه برلاسي دریځ کې دی، تاسې د افغانستان هغو خلکو ته چې له امارت څخه د باندې دي، څّ پیغام لرئ؟**

ځواب: پیغام مو دا دی چې که ښه تفاهم راسره وکړي او بیا غدر او دښمني راسره ونه کړي؛ نو موږ به یې داسې بولو لکه خپل ورونه، که دوی هم موږ خپل ورونه وبولي. زه امید لرم چې ان شاء الله ټول مشکلات به حل شي؛ نو د ټولو هیوادوالو څخه مو هیله دا ده چې مطمئن واوسي او کومه اندېښنه دې نه کوي. ان شاء الله د اسلامي امارت مشران به ټولو باندې رحم وکړي. مشرانو کې د تبعیض فکر نشته. افغانستان زموږ او تاسې اسلامي هیواد دی، باید په خپل ملک کې ټول افغانان په شریکه سره کینو، یو بل ته احترام ولرو او په یو بل رحم وکړو.

پوښتنه: محترم حاجي ملا صاحب! تاسې د خپل نوي ټاکل شوي مذاکراتي ټيم څخه څومره ډاډه ياست؟

ځواب: اول لـه امير المؤمنين اخندزاده صاحب څخه ډېر خوشاله او شکر گزار يم چې د دې ټيم په ټاکلو کې يې ما او رهبري شورا ته ډېره ښه رهنمايي کړې ده. الحمدلله د ټيم ټول غړي علماء ، تجربه لرونکي او با استعداده خلک دي، پـه هـر ډگـر کـې ازمويل شوي دي. موږ، مشرتابه او ملت پـه دې ټـيم بـاور لـرو . او کيـدای شي چې الله جـل جلالـه د دوی پـه توسـط يـوه د حـل داسـې لاره راوباسي، چې د اسلام او مسلمانانو په خير وي.

پوښتنه: له ځينو خلکو سره انديښنه ده چې که اسلامي امارت قدرت ته ورسيږي؛ نـو ځينـې سـياسي شخصـيتونه بـه لـه هيـواده ووځي او يابه مخالف شي؟

ځواب: زه باور لرم چې داسې به ونه شي؛ ځکه چې اوس موږ او دوی تجربه ترلاسه کـړې ده او مـوږ تـر بـل هـر چـا ددې وطـن د سپين ږيـرو، مشرـانو، علمـي او جهـادي شخصـيتونو پـه قـدر ښـه پوهيږو؛ نو هغه مشران دې بالکل مطئمن او په خپل هيـواد کـې دې واوسيږي. ان شاءالله زموږ له خوا به هغـوی تـه پـوره احـترام وي، داسې درناوی، لکه څنگه يې چـې د اسـلامي امـارت مشرـان خپـل مينځو کې يو بل ته لري .

پوښتنه: محترم حاجي ملاصاحب! تاسې د سيمې، گاونـډيو او نړيوالو هيوادونو ته څه پيغام لرئ؟

ځواب: گاونډيو، د سيمې او نړيوالو هيوادو ته اطمنان ورکوو چې راتلونکی نظام به د هيچا په ضرر نه وي، موږ نـه د چـا تـر اثـر لاندې يو، چې نورو تـه د اندېښـنې لامـل شي او نـه چـا تـه د ضرر اراده لرو، بلکې د ښو روابطو غوښتونکي او خوښوونکي يو.

پوښـتنه: تاسـې راتلـونکي کـې نړيوالـو سره څنگـه روابـط غواړئ؟

ځواب: اينده کې که چا ښه روابط راسره غوښتل، موږ يو پـه دوه ورنژدې کيږو، گام يو په دوه وراخلو. دا اميد لرو چې گاونـډيان ښه روابط راسره ولری، هغسې چې د ملکونو تر منځ وي. دا خـو تـر لمر سپينه خبره ده چې موږ تر اوسه کـوم گاونـډي تـه تـاوان نـه دی رسولی؛ نو د اينده لپاره هم دا غواړو چې هيڅ هيواد دې زموږ څخه په دې اړه انديښنه نه لري.

پوښتنه: محترم ملابرادر اخند! په دې مذاکراتو کې چې ناست يئ، څه داسې پرېکړې او مادې خو به مخ ته نه وي راغلې او يا خـو به تاسې توافق نه وي ورباندې کړی، چې له خپلو پخوانيـو اصـولو تېر شوي ياست او يا مو د خپلو تېرو مشرانو تگلاره شـاته پريښـې وي؟

ځواب: نه! الحمدلله چـې د اڅـومره ورځـې مجلسـونه شـوي، داسې ټکی او نظر مې نه تر ستر گو کيـږي، چـې پـه هغـه کـې دې موږ يو داسې ټکی استعمال کړی وي چې هغه دې زموږ لـه اصـولو او قانون څخه خلاف وي؛ ځکه چې موږ داسې خبره کړې چـې مـوږ خپله خاوره د هيچا پر خلاف نه استعمالوو، او نه بل چـا تـه دا اجـازه ورکـوو چـې زمـوږ خـاوره د نـورو هيوادونـو بـه خـلاف اسـتعمال کړي. پخوا هم زموږ همدا دريځ و، اوس هم دی او په راتلونکې کې به هم وي.

پوښتنه: حاجي ملاصاحب! په پای کې مجاهدينو ته کوم پيغام لرئ؟

ځواب: مجاهـدينو تـه مـې پيغـام دا دی چـې اللـه تعـالی پـه سياسي او نظامي ډگر کې کاميابي درکړه؛ نو چې غرور او تکبر ونه کړئ، عاجزي وکـړئ! د اللـه تعـالی شـکر اداء کـړئ او د قـدرت د هوس پرځای د اسلام او اولس د خـدمت فکـر خپـل کـړئ! د اولـس مشرانو ته د پلرونو، همزولو ته د ورونو او کشرـانو تـه د او لادونـو په نظر وگورئ. دوی ته مو دا توصيه ده او دا مو تـرې غوښـتنه ده، چې تکبر، غرور او لـويي ورڅخـه ونشي- او لـه عوامـو سره داسـې برخورد وکړي، څنگه يې چې پلار له زوی سره کوي او پر سر د رحم او مهرباني لاس ورتېر کړي.

-محترم حاجي ملا صاحب ډېره مننه چـې مـوږ تـه مـو وخـت راکړ.

-مننه، خير يوسې .



# اشرف غني ولې

## زموږ د تاريخ سپکاوی کوي؟

قاري حبيب

د ګډوله حکومت مشر اشرف غني چې په دې وروستيو کې داخلي رقيبانو، پوځي فشارونو او په خاص ډول په قطر کې روانې د سولې او مذاکراتو پروسې يو مخ ترې لار ورکه کړې او تر ليونتوبه رسيدونکی دی، نو يې داسې کړنو او خبرو ته لاس اچولی چې يوازې د نوموړي اسلام دښمنه او افغان دښمنه ماهيت ترې معلوميږي او له يادو علياء ارزښتونو د غچ اخيستلو هڅه کوي.

که له يوې خوا اشرف غني په ديني او مذهبي شعائرو پسې را اخيستې، درګرده مدرسې ورانوي، مسجدونه نړوي، ملا امامان په شهادت رسوي او د شپنيو عملياتو، چاپو او بمبارونو په توسط د مذهبي ځايونو سپکاوی کوي. بل اړخ ته يې په دې وروستيو کې د افغان ولس د ملي ارزښتونو په وړاندې هم سپکه ژبه کارولې او د ملي وياړونو د توهين هڅه يې کړې.

له دين او اسلام سره د اشرف غني د دښمنۍ علت خو له ورايه معلوم دی، هغه افغان الاصله امريکايي چې يوازې تولد يې په افغانستان کې شوی، نور يې د ماشومتوب، ځوانۍ او پاخه عمر ټول کلونه په امريکا کې تېر کړي، د امريکا په آب و هوا پاييدلی او د هغه هيواد له خوراکونو تغذيه شوی، فکر يې په امريکايي ښوونځي او پوهنتون کې روزل شوی. امريکايي استادانو يې شخصيت ډيزاين کړی، ښځه يې نصرانۍ او اولادونه يې سره امريکايان دي چې نه افغانستان پيژني او نه هم ځان د افغانستان بولي. نو دغسې ځوک چې د کفارو په لاس تربيه شوی او پالل شوی وي، ضروري ده چې هغه به يوازې د کفر لپاره خدمت کوي او د اسلام، اسلامي مقدساتو، مساجدو، مدرسو او ديني شخصيتونو په وړاندې يوازې د کرکجن چلند او عمل تمه ترې کيدلای شي.

له دين او اسلام سره د اشرف غني دښمني خو تر لمر لا روښانه ده، اما نوموړی او د هغه پيروان هميشه د افغانيت دعوې کوي، ځانونه ملي ګرا او وطن پرست افغانان بولي او په همدې شعارونو په افغان وطن کې ځان ته د پل ايښودلو ځای پيدا کوي.

خو په دې وروستيو کې چې کونړ ولايت ته د سفر په مهال اشرف غني دافغانستان د وياړمن تاريخ په باره کې سپکه ژبه وکاروله او حتی د افغانستان د مؤسس او ستر مجاهد او عالم پادشاه احمد شاه بابا سپکاوی يې وکړ، هغه يې ظالم وباله چې د ظلم په لاره يې واک تر لاسه کړی و. نو په دې سره ثابته شوه چې اشرف غني لکه څنګه چې د افغانانو له دين او ديني ارزښتونو سره دښمني لري، همداراز د دې اولس ملي او تاريخي وياړونه هم په رسميت نه پيژني بلکې د سپکاوي وړ يې بولي.

زموږ په باور اشرف غني ځکه د افغانستان د مؤسس احمد شاه بابا سپکاوی کوي، چې احمد شاه ابدالي په خپل وخت کې يو لوی مسلمان، مجاهد، عالم او پرهيزګار پاچا وه، احمد شاه بابا له کفر او بې دينۍ څخه کرکه درلوده. خپل د دربار او پاچاهۍ کارونه يې ددينې علماء کرامو په مشوره پر مخ وړل. هم يې په خپله واکمني کې اسلامي عدالت پلی کړی

و او هم يې په هر ځای کې د مظلومو مسلمانانو غږ اوريده او د خپل توان په اندازه يې ورسره همکاري کوله .

په دې لړ کې يو تر ټولو ښکاره دليل دا دی چې کله په هند کې د اورنگزيب عالمگير له وفات وروسته د مغلو اسلامي واکمني کمزورې شوه، نو په هند کې د مرهټيانو هندو قوم راپورته شو، د هند ډير برخې يې ونيولې او په ډهلي کې يې د مسلمانانو واکمني د سقوط له گواښ سره مخامخ کړه. په همدې وخت کې په هند کې لوی مسلمان عالم، مصلح او داعي شاولی الله صاحب احمد شاه بابا ته خط وليږه او له هغه يې غوښتنه وکړه چې هند ته راشي او د هندوستان د مسلمانانو مرسته وکړي.

احمد شاه بابا چې کله په هند کې د مسلمانانو له کمزوري حالت څخه خبر شو، نو د ديني او جهادي جذبې په اساس له خپلو لښکرو سره د هند په خوا لاړ، د پاني پت په ميدان کې د مرهټيانو له ډير ستر لښکر سره مخامخ شو. په ميرانه يې غزا وکړه، د مرهټيانو لښکر يې مات کړ او د هند مسلمانان يې د هندوانو له شر او ظلم څخه په امن کړل.

د اشرف غني په شان له ماديت څخه متأثر خلک هند ته د احمد شاه بابا تگ داسې تعبيروي لکه خدای مکړه هغه چې د ولجو، پيسو او سرو سپينو د تر لاسه کولو لپاره په هندوستان بريد کړی وي. خو حقيقت دا دی چې احمد شاه بابا يو مؤمن او مجاهد پاچا و، هغه په اسلامي اخوت باور درلود او هند ته تلل يې يوازې د ديني انگيزې له مخې و چې غوښتل يې د مرهټيانو له خطر سره مخ د هند د مسلمانانو مدد وکړي او د مسلمانانو واکمني له سقوط څخه وژغوري.

احمد شاه بابا، زوی يې تيمور شاه او لمسی يې زمان شاه هغه خلک و چې نه يوازې افغانستان بلکې د هند خاوره يې هم د انگريزي، فرانسوي او نورو غربي استعمارگرو له ښکيلاکه ساتلې وه. چې وروسته د اشرف غني په شان يو د کفارو گوډاگی او د تاريخ پيغور شاه شجاع پيدا شو او د مسلمانانو خاوره يې د کفارو په واک کې ورکړه.

احمد شاه بابا په خپل دور کې د هغه عثماني خلافت سره پخه ملگرتيا او تاوده اړيکي درلودل چې د اشرف غني د ولينعمتانو غربيانو په وړاندې د سد سکندر په شان ولاړ و او څو پيړۍ يې نه يوازې اسلامي نړۍ د غرب له هر ډول اذيت څخه ساتلې وه، بلکې په اروپا يې هم سيوری پروت و او د روم امپراطورۍ د پلازمينې قسطنطنيې د فتح وياړ له ځان سره درلود.

نو د اسلام او مسلمانانو لپاره د احمد شاه بابا د دومره کارنامو سره سره خو به د غرب لخوا روزل شوی اشرف غني خود دې د اسلام دغه عادل پاچا ته په قهر وي او بيلابيل تورونه به پسې غوټه کوي.

خو اشرف غني بايد په ياد ولري چې تاريخ بې رحمه قاضي دی، فی الحال کې هر څو رسنۍ او د ارگ معاشخواره مبلغين ستا په لاس کې دي او ستا اپلتو ته چکچکې وهي. خو تاريخ ستا نوم ضرور د شاشجاع، يعقوب خان او کارمل په کټه گورۍ کې ليکي. موږ ته معلومه ده چې تا خپل ژوند او هستي ټول د امريکا خدمت ته وقف کړي. امريکايانو ته د افغانستان د اشغال ترون ستا لخوا ورکړل شو او په امريکايي ټوپکو او چورلکو زموږ مظلوم اولس هره شپه ستا لخوا قتليږي .

ان شاء الله هغه ورځ لرې نه ده چې د دغو مظالمو، سپکاويو او خرمستيو د ذرې ذرې حساب درسره وشي او د شاشجاع په شان د تاريخ عبرت وگرځې.



# د دوحې له غونډې نه،
# د طالبانو پټې ګټې....!!

لیکنه: نعمت میوند

پرون سشنبه، ۱۲ مارچ د طالبانو او امریکایي پلاوي ترمنځ د څه باندي نیمي میاشتې مذاکراتي غونډه پرته له دې چې طرفین پر یوې څرګندي هوکړې لاسلیک وکړي؛ پای ته ورسیده، هغه څه چې ډېری خلک یې په تمه وو .

حقیقت دا دی څومره چې د افغانستان اوسنۍ اتلس کلنه اشغالي جګړه پیچلې شوې؛ همدارنګه یې حل هم همدومره پیچلی شوی دی. نه باید چې د دومره طویلې جګړې د عاجلانه حل لارې د موندلو هیلې ولرو .

یو ټکی چې ډېر هیله بښونکی دی، هغه دا چې دواړه لوري په شعوري توګه ځان دې ته اړ ګڼي چې باید دا لانجه هرو مرو ژر تر ژره په یو سوله ایز شکل سره حل وفصل کړي. دواړه لوري پر دې متفق دي چې د سولې ضد کړیو د مصالحو او اضرارو په نظر کې نیولو پرته؛ د خپلو دوه اړخیزو ګټو او زمیني حقایقو په رڼا کې د دې خونړۍ لانجې غوټول د دوی یوه حیاتي اړتیا او دا یې په خیر ده .

دا ټکی دومره امید بخښونکی دی چې که هرڅومره دا لانجه پیچلې ده، خو حل لارې ته هرو مرو امیدواري شته. چې بالاخره به د دغه ډول مذاکراتي غونډو په پایله کې یو داسې حل راوځي چې د افغانستان او امریکا د ولسونو خیر پکې نغښتی وي.

**رسمي څرګندوني**

د ذبیح الله مجاهد او زلمي خلیلزاد له رسمي ټویټونو نه داسې ښکاري چې خبري خورا پیچلې خو پرمختلونکي دي، دا ځکه چې په اصولو کې پر هغو لاینحله ټکو باندي نا لاسلیک شوی توافق شوی، چې له امله یې د همدې طویل بحران بنیاد اېښودل شوی .

هغه دا چې پر افغانستان د امریکا له لوري یرغل له دې امله وشو چې د امریکا امنیت د امریکا په ګومان له افغانستانه وګواښل شو، چې ظاهراً د جګړې یو بنسټیز عامل ورته ویل کیږي، د دغه عامل د له منځه وړلو لپاره طالب لوري لکه څنګه چې همیشه په خپلو خبرپاڼو کې ویلي؛ په دغه ۱٦ ورځنۍ مجلس کې یې امریکایي لوري ته د بیا خطر نه پیښیدلو ډاډ ورکړی او دا یې هم ورته واضح کړې چې هغه خطر که د امارت کسان پیښوي او که یې القاعده یا بله کومه ډله، ځکه امارت چې د ځان لپاره څه مناسب نه بولي نو بل ته هم اجازه نه ورکوي، دویم د جګړې آساسي عامل اشغال دی چې د هغه د ختمولو ډاډ امریکایي لوري طالب ته ورکړی. دا چې میکانیزم به یې څه وي؛ د دوی په خبره په راتلونکو پړاوونو کې به څیړل کیږي .

**د سرچینو خبره**

د دوی دواړو (مجاهد او خلیلزاد) په تأیید له نورو باخبره طالب سرچینو نه ترلاسه شوي مالومات هم ښیي چې بنسټیز توافقات په دې توګه شوي دي :

» دا پړاو خبري په ښه ډول پای ته ورسیدي، که څه هم ستړیاوي یې ډېري درلودي، خو په ډېر څه سره یوه شوو، یو د بل لوړیتوبونه مو ښه درک کړل، د یوې مسودې په

ترتیب کار وشو په ځینو برخو کې یې سره نږدې شوو او په ځینو کې لا فاصله شته، سرچینه زیاتوي چې د ترهگرۍ د سدِ باب په برخه کی موږ تر دې ځایه ورغلي یو چې نه موږ خپله تاسو ته د ضرر هوډ لرو او نه هم بل چاته اجازه ورکوو چې زموږ خاوره ستاسې پرضد وکاروي، او د بهرنیانو د وتلو پرخبره امریکایي لوري راسره حتمي هوکړه کړې، خو پروخت او زمان مو یې ترمنځ اختلافي فاصله شته، موږ د لیرو میاشتو خبره کوو، خو دوی د ډیرو میاشتو مطالبه کوي. د بین الأفغاني ډیالوگ خبره هم منل شوې او هم مو تر وار له مخه په مسکو کې د هغې نمونه ورته ښودلې، په راتلونکي کې هم په همدې توگه پر بین الأفغاني خبرو اراده شته.» دا هغه وروستي ټکي وو چې له دخیلو سرچینو نه ترلاسه شوي او په لړ تفصیل سره د جانبینو د رسمي ادرسونو د ویناوو تأیید کوي .

## د طالبانو ضمني گټې

- *۱*طالبانو پرته له دې چې له امریکا سره د ځواکونو پر وتلو آنې او وختي فیصلې وکړي؛ ضمناً یې له امریکایې لوری سره، د طویل المدت سیاسي اړیکو په رابطه هم ځینې عمیق نظریات سره تبادله کړل چې په اوږده راتلونکي کې هم د یوبل له ضرري سیاسته ځانونه وژغورلای شي. تردې چې ویل کیږي پرځینو مادو یې د توافق سر هم سره ښورولی دی .

- *۲*طالبانو وکولای شول چې هم امریکایې لوري ته خپل ځان ور وپیژني او هم د دوی خبره له نږدې واوري، همدارنگه د امریکایې جهت له ذهنه د ځان په اړه هغه تصویر تر یوه حده لیری کړی چې دا شل کاله میدیا او یا هم د کابل اداري د دوی په ذهن کی جوړ کړی و. همدا وجه ده چې امریکایی لوری له طالبانو سره د یوې ډلي نه، بلکې د افغانستان د اصلي نماینده په توگه خبرو ته را وړاندي کیږي، قدم په قدم هغوی پخپل مذاکراتي پلاوي کې د وظیفوي اهمیت له مخې د زیادت نوښت راولي .

یوې سرچینې دا هم ویلي چې حتی په دې هم خبری وشوې چې که بهرني وگړي افغانستان ته راځي نو څنگه به ویزه ورکول کیږی او څنگه به قانونی استوگنه کوي ظاهره خبره ده چې ویزه ورکول د حکومت کار ده خو غوښتنه او طرز یې له طالب سره حل کیږی چې طبعا به داسي خبري د کابل حکومت وارخطا کوي.

- *۳*بل دا چې د نړیوالو توجه یې لا ډیره جلب کړه، له حصار نه ووتل د میډیا منفی تعامل یې مات کړ، آواز یې اوچت شو او هغه انگیرنه یې ناسمه ثابته کړه، چې که طالبان سیاسی ډگر ته راووتل نو د سیاسي استعداد د کمښت له امله به مات او یا بدنام شي .

- *٤*د کابل هغه حکومت چې د نړیوالو خصوصاً د امریکا په اتلس کلن محنت او پریمانه ځاني او مالي مصارفو منځ ته راغلی؛ له سخت سیاسي تجرید سره یې مخ کړ، په کورنۍ او بهرنۍ کچه یې له اعتباره وغورځاوه او حتی چارواکو ته یې داسی رواني تکلیف ورپیښ کړ چې خپل ډیر ملگري یې د ژبې په زهرو خفه کړل څکه چې ژبې نشي کابو کولای .

## د یوې سرچینې خاطره

د مذاکراتو په جریان کې غیر رسمي گډون کوونکي، خو موثقي سرچینې راته وویل چې د مذاکراتو پرمیز به طالب مرکچیانو امریکایي لوري ته داسي سرخلاصي ځوابونه ویل، چې د ده په خبره سړي به داسي گمان کاوه چې د کلي په پټیو یا د ژمي په پیتاوي کې دوه کلیوال یو بل ته سپیني خبري کوي، د سرچینې په وینا د طالبانو دې ډول تعامل ته دربیمگړي عرب ډېر حیران پاتي کیدل څکه چې امریکایانو ته خو تر اوسه چا داسي مخامخ څه نه و ویلی .

## وروستۍ خبره

که څه هم له رواني مذاکراتي پروسې سره د ډېرو ځوریدلو افغانانو هیلي تړلي دي، دوی امیدوار دي چې په نتیجه کې به یې یوه تلپاتي سوله رامنځ ته او د جنگ جگړو کمبله به ټوله شي، له همدې امله ډېري کونډې او یتیمان لاس

# طالبه! یو ګوزار بل غواړي

رشید حبیب زی

تیر و ورځو کې د شوارب په امریکایی بیس د طالبانو یو اتلوال برید د لسګونه امریکایي عسکرو په وژلو او بې شمیره مالی زیانونو سره په داسی وخت پای ته ورسید چې د قطر پلازمینه دوحه کې د افغان کشالې د سیاسی حل په موخه یوه مهمه ناسته دوام لري چې د ځینو ګډونوالو له قوله ممکن فیصلو ته سره هم ورسیږي زما په اند که دا ډول اتلوال بریدونه دوام ومومي ګټې به یې ډیری وي ځکه

د جرګو او مرکو په وخت هر لوری کوشش کوي چې په مقابل اړخ د بیلا بیلو لار فشار راوړي تر څو وکولای شي په ښه توګه د هغوئ غوښتنو ته غاړه کیږدي په همدی موخه امریکایانو د مذهبي فشارونه هڅه وکړه چې په اندونیزیا او سعودي کې یې د تش په نوم او ناخبره عالمانو ناستې دایری کړلی چې غوشتل یې د شریعت له نظره روان سپیڅلی جهاد تر پوښتنو لاندی راولي چې تر ناکامیدو وروسته یو خوا ته خلیلزاد د عربي او ګاونډي هیوادونو پر مټ پر طالبانو د سیاسي فشار او په داخل د افغانستان کې د بې ګناه وګړو په شهادت او د کلیو او تاریخي مسجدونو او مدرسو په بمباریو سره د نظامي فشار هڅې ګړندی کړي دي خو دا چې طالبان وار له مخه داسی حالاتو ته متوجه دي او دا ۱۷ کاله هیڅ ډول فشارونو د خپل دریخه په شا نه کړل نو امکان نه لري چې نن به یې عاجلانه پریکړو ته اړ باسي خو اما د طالبانو له لوری د دا ډول بریدونو دوام به هم په داخل او هم خارج کې خورا اغیزناکې پایلی ولري:

د خارجي پایلو په توګه باید او وایم چې امریکایان په یو ډول اضطراري حالت کی قرار لري ځکه د ټرمپ د ځینو دیوانه ډوله پریکړو وروسته د امریکا څارګری اداری سی ای اے سره ویره پیدا شوه چې هسی نه ټرمپ د افغانستان قضیه هم د یوه ټویټ له لاری حل کړي او د ټولو عسکرو د ویستلو اعلان وکړي د همداسی حالت د مخنیوي لپاره یې د خلیلزاد په ګومارنې سره ټرمپ ته اطمینان ورکړ چې امریکا لره د افغانستان د تاریخي ماتې څخه د ژغورلو لپاره یو ډول سیاسي پوزه جوړه کړي چې ممکن خلیلزاد به تر ګومارنې وروسته حد اقل یوه شپه هم د اطمینان احساس نه وي کړی د امریکا څخه رهي د اوبو وړي په څیر هر خواته لاس او وهي اخر کی د طالبانو ښیو ته تر ناستې وروسته سی ای اے ته خپل راپور وړاندی کړي نو په دغسی حساسو شرایطو کی د لسګونه امریکایانو وژنه هغوئ ته خورا درنه تماميږي او هغوئ دی ته مجبوروي چې څومره زر کیدای شي له صحنې ښپې اوباسو نو زما په فکر ښه به دا وي چې طالبان په سیاسي میدان کې یو څه نور هم تم شي او د شوراب په څیر اتلوالو بریدونو ته دوام وکړي تر څو وکولای شي په ښه توګه خپل مرام ته ورسیږي

تر کومه چې د داسی بریدونو داخلي ګټه ده هغه د افغانانو پاریدلیو اسلامي احساساتو ته سکون وربښل دي ځکه امریکایانو د جوماتونو او مدرسو په بمبار سره د نظامي طالبانو او با احساسه افغانانو احساسات راوپارول نو په دغسی اتلوالو بریدونو سره به دافغانانو اسلامي او جهادي تنده هم په ښه توګه خړوبه شي

# د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د ژوند وروستۍ ورځې

د امریکا معتبر اخبار وال سټرېټ ژورنال د مارچ پر ۱۰ لیکي د طالبانو مشر ملا محمد عمر اخوند د ژوند تر آخره پوري د افغانستان په جنوب کي یوې امریکایي نظامي اډې ته څېرمه په خفا کي ژوند کاوه، او د متحده ایالاتو استخباراتو او نورو جاسوسي ادارو د ملا عمر د ځای ځایګي په اړه غلط معلومات درلودل .

وال سټرېټ ژورنال وایي د ( سي ای ې) او نورو استخباراتي سازمانونو اجماع پر دې وه چي ملا عمر په پاکستان کي پټ دی. وال سټرېټ ژورنال دا نوی رپوټ لیدلی دی، او دا رپوټ د ملا محمد عمر اخوند وروستۍ ورځې په جزییاتو بیانوي. رپوټ وایي چي ملا عمر د خپل باډي ګارډ، جبار عمري، سره یو ځای ژوند کاوه. د ډېرو کمو خلګو سره یې ملاقات کاوه، او کله ناکله یې د تحریک شورا ته پیغامونه استول.

دا رپوټ به څو ورځې وروسته په واشنګټن او نیویارک کي خپور سي. پدې رپوټ کي د هغو خلګو سره مرکې سوي دي چي د ملا عمر سره یې نژدې اړیکي لرلې. ملا عبدالغني برادر د ملا عمر نژدې ملګری او یار وو .

دا رپوټ وایي متحده ایالاتو د خپل دوښمن په اړه پر غلطو معلوماتو باندي تکیه کوله، او د طالبانو د نهضت په باب یې معلومات ډېر ناقص دي .

د امریکا مرکزي استخبارات (سیا) له تبصرې کولو څخه ډډه وکړه.

په افغانستان کي د امریکایي قواوو پخوانی قومندان جنرال ډېویډ پټریس وایي دا ناممکنه ده چي ملا عمر دي په افغانستان کي پاته سوی وي، ځکه په هغه صورت کي به امریکا هغه په ډېره اساني خپل هدف ګرځولی وای. هغه علاوه کوي،«موږ په افغانستان هر ځای ته لاسرسی لاره. دا به یوه حیرانونکې خبره وي چي ملا عمر دونه ریسک منلی وای چي یوه شپه موږ نابېره دروازه ور ټکولې وای ».

اخبار لیکي امریکا په کلونو کلونو ادعا کوله چي د طالبانو مشران په پاکستان کي دي، او پاکستان یې ساتي. خو پاکستان دا ادعاوي ردولې .

دا رپوټ وايي د ۲۰۰۱ په پای کې ملا محمد اخوند د طالبانو ورځنۍ چاري ملا عبيدالله اخوند ته ورسپارلې، او خپله د زابل ولايت ته ولاړ. هغه څو کاله په کلات کې ژوند وکړ، او د عبدالصمد استاذ په کور کې مخفي وو .

يو ځل د امريکا خاص قواوو پر همدې کور باندي چاپه ووهله، خو هغه مخفي کوټه يې پيدا نه کړه چې ملا محمدعمر په کښې مخفي وو .

اخبار ليکي چې د امريکا د دفاع وزارت پدې برخه کې له تبصرې کولو څخه ډډه وکړه .

د افغان د جنگ مشهور تحليلګر ښاغلی برهان عثمان وايي ملا عمر د پاکستان په اړه سخت شکمن اوهيڅ بار يې ورباندې نه درلود،

عثمان وايي د هغه تحقيقات ښيي چې ملا محمد عمر په زابل کې وو .عثمان وايي دا خبره درسته ښکاري،«ځکه ملا عمر فکر کاوه چې پاکستان به له ده څخه د يوې الې په توګه کار واخلي،او د طالبانو د نهضت سمت او جهت به ور بدل کړي «.

وال سټريټ ژورنال ليکي کله چې امريکايانو د ملا عمر مخفي کور ته څېرمه خپله نظامي اډه جوړه کړه، ملا عمر د سيوري ولسوالۍ ته کډه وکړه. دا ځای د ملا عمر پلرنۍ سيمه ده. پدې وخت کې ښاغلي عمري د ملا عمر لپاره يو د خټو کور پيدا کړ، او تر مرګ پوري ورسره وو. ملا عمر په ۲۰۱۳ کې وفات سو .

دا ځای هم د امريکايانو له يو بل نظامي بېس څخه فقط څو ميله ليري پروت وو. پدې سيمه کې څو امريکايي عسکر وژل سوي دي .دا رپوټ وايي ملا محمد عمر اخوند په سيوري کې منزوي او پټ ژوند کاوه. يوازې به کله نا کله د پيتاوي لپاره بهر راووت. وخت نا وخت به يې د خپلې ږيري د رنګولو لپاره نکريزي غوښتې، او کله نا کله به يې نسوار هم غوښتل .

ښاغلي عمري وايي چې ملا عمر په ۲۰۱۳ کې ناروغه سو. هغه نه غوښتل چې ډاکټر ته ولاړ سي،او يا هم د معالجې لپاره پاکستان ته سفر وکړي، څو بالاخره په زابل کې وفات سو. د ملا عمر کورنۍ هغه په زابل کې ښخ کړ.

## ملا محمد عمر رحمه الله په ما له زړه ګران دی

داکترعبيد

همدا د بغاوت او مينې اوج دی چې دا اوولس کاله مې برالا په نره د دې عظيم انسان د عظمت کيسې ليکلې. مخامخ مجلسونو کې مې سپک ويونکي په ډېر جرت سپک کړي. دا هر څه مې تر ننه په داسې وخت کې کړي چې هلته يې نوم اخيستل کفر وو.

دا خاص په دې خاطر چې عمر ،ربښتيني مسلمان او اصيل افغان وو .

ډېرو په پاکستان تپه، خو زما په دې سر خلاص وو چې دا سړی د ازادۍاو افغانولی سمبول وو. عمر د احمد شاه بابا او ميرويس خان نيکه د لېول سړی وو.

په دې خبرو او حقايقو هغه نشي پوهېدای چې پردو او وطن دوښمنو لخوا برېن واش شوي.

نن ورځ يې د دوښمن رسنۍ (وال سټريټ ژورنال) په يوه تحقيقاتي ليکنه کې اعتراف کوي چې سي ای اې د ټولو ادعاوو خلاف ملا عمر له افغانستان نه حتا د باندې نه و وتی.

ملا عمر په وروستيو کې د امريکا ضد جګړې ټول جنګي صلاحيتونه خپل مرستيال ملا عبيدالله ته سپارلي وو. تاسې خبر ياست چې ملا عبيد د پاکستان په زندان کې د شکنجې له امله ساه ورکړه

مور لپاره هر هغه څوک اتل دی چې په سختو شرايطو کې يې سر په وطن، ديني ارزښتونو او افغانواله کېښود.

## د پاکستان او هند ترمنځ د تربګنۍ او دښمنۍ

# په تاریخي شالید یو ځغلنده نظر

هڅاند

روان کال (۲۰۱۹ز) دفبروري په ۱۴مه دهند ترولکې لاندې کشمیر په( پلوامه) نوم سیمه کې د موټربم په یوبرید کې دهند دنیمه پوځ ۴۴ پوځیان ووژل شول اود برید پړه دجیش محمد په نوم یوې جهادي ډلې په غاړه واخیسته.

اود هند حکومت پړه په پاکستان واچوله او دهغه پرخلاف یې په دیپلوماتیک محاذ جنګ پیل کړداچې هندته په دغه محاذ کوم دپام وړ بری په برخه نشونوژر یې پوځي ډګرته ودانګل

په هند کې یوشمیرسیاسي فعالانو په هندي صدراعظم (نرایندرمودي) باندې دیاد برید پړ ه واچوله او د برید ترشاه هغه او دهغه حکومت په لاس لرلو تورن کړ چې غواړي په دې سره په ټاکنوکې خپل ملاتړ زیات کړي ،هغوی دمودي بیانیه په کلکه ردکړه، دهندي واک لاندې کشمیر پخوانۍ مشرې وزیرې (میرمن محبوبه مفتي) هم دمودي دسوچ او دهغه دخطرناکوارادو پر ضد دبغاوت غبږ پورته کړ او په جنایتونو یې تورن کړ

په همدې مهال هندي حکومت دیادې پیښې په پلمه ترخپلې ولکې لاندې کمشمیرکې دټولو هغو بیلتونکوغوښتونکوډلو مشران ونیول څوک چې د نیمې پیړۍ راهیسې هندنه دکشمیر ازادۍ اوخپلواکۍ غواړي او هم یې شل زره دم خواکونه کشمیروادۍ ته واستول

دفبروري په ۲۶مه نیټه سهاردهند دوه (میراج۲۰۰۰) الوتکې دهند فضائي حدودوڅخه په تیریدو او دپاکستان حدودوته په ننوتو دخیبرپښتونخوا ایالت بالاکوټ جبه نوم کلی بمبارد کړ اودعوه یې وکړه چې په یاده سیمه کې یې دجیش محمد اونوروکشمیري جنګیالیو مرکزونه بمبارد اوپه سوونه جنګیالي یې وژلي ، په ځواب کې دپاکستان دپوځ ویاندوویل: په رادار دهندي الوتکوپه ښکاره کیدو سم لاسي د پاکستان هوائي ځواک طیاره ویشتونکې( ایف ۱۷) الوتکې پورته شوې او هندي الوتکو له ډاره هدف ته درسیدوڅخه وړاندې بارپه یوه غرنۍ سیمه وغورځاوه اوبیرته هندته و تښتیدې

په دې سره رسنیوکې دپاکستاني پوځ پر دفاعي صلاحیت اوقابلیت بندې یولړ نیوکې، پوښتنې اوبحثونه شروع شول اوپه مقابل کې هندیانودخپلې بریا سندرې غږولې اودعوه یې کوله چې هوائي ځوکوانو په ډیرمهارت سره بالاکوټ کې دبریالیو عملیاتو په نتیجه کې دجیش محمد سلګونه جنګیالي ووژلي!

دهند د ګام پرضد دپاکستان حکومت اوپوځ دواړه په خوځښت راغلل اودپوځ ویاند اخطار ورکړ: چې هندته ددوی ځواب به حیرانوونکی وي!

فبروري په۲۷مه دوهم ځل لپاره دهند ۲جنګي الوتکو (مګ۲۱) دپاکستاني حدودو نه په تیردو بیا غوښتل اهداف ننبه کړي خو داځل پاکستان وینښ و اوو دکوم ځنډ پرته یې دوه هندي جنګي الوتکې( مګ۲۱) رانسکورې کړې چې یوه دهند واک لاندې کشمیرکې وغورځیده او بله دپاکستان کشمیر په بهمبرسیمه کې پریوته... اوهم یې پیلوټ ژوندی ونیول شو

دپاکستان مشهور ژورنالست حامد میر په وینا:
په نړیواله میډیا کې داسې اطلاعات ګردش کوي چې دهندوستان هوائي اوپلي ځواکونو په وروستیوعملیاتو کې اسرائلي وسلې کارولي او دمصدقه منابعو په وینا چې هند او اسرائل دواړو دراجستان دلاري په پاکستان دقوي بریدونو پلان جوړ کړی و خو دغه پلان دپاکستان څارګرو شبکو وخت په سرباندې کشف او هند ته یې په غبرګون کې دسخت اخطارخبر داری ورکړ او هم یې دهند دپلان څخه دنړۍ ځواکمن هیوادونه خبرکړل په دې سره د هند اواسراییل ګډ پلان رسوا شو اووربانډې دعمل چانس یې پیدا نکړ
دهند دبهرنیو چارو وزیره سشماسوراج چې دغه مهال دروسیې اوچین دبهرنیوچارو وزیرانو سره دلیدولپاره چین ته لاړه وه هغې هلته وویل: هندوستان یو ذمه دار هیواد په توګه نه غواړي جګړه نوره وغځوي اویا دپاکستان سره خپل اړیکې ددینه نور خراب کړي
په ورته وخت کې دهند اوپاکستان ترمنځ په نړیواله پوله هم ددواړو ترمنځ پریوبل ددرنووسلو پرلپسې بریدونه کیدل دهغو له ویرې یې دواړه غاړوته په زرکونو کورنیوخپل کورونه خوشې کړل او خوندي ځایونوته کډه شول

### دهند اوپاکستان ترمنځ د شویو جنګونو تاریخ:

دهندوستان اوپاکستان ترمنځ ددښمنۍ تاریخي پس منظر د دواړه هیوادودعمر همزول دی کله چې په ۱۹۴۷ زکال کې دواړه برتانوي اشغال غبرګونکي وزیږول ، دځینوایالتونو لاندې کولو په حرص دواړه سیالان په مخاصمت ا ودښمنۍ کې سره کیوتل اوپه هم هغه کال (۱۹۴۷ز ) کې دوه میاشتې وروسته دکشمیرایالات لاندې کولوپه سر په جنګ شول،هندوستان ترمظفرآباد کشمیر نیولی و،دا چې دغه مهال دپاکستان دپوځ مشریوبرتانوی انګریزو،هغه د جناح دحکم باوجود کشمیرته دپوځ لیږلوڅخه انکار وکړ دلته تصادف داو شو چې دغه مهال متعصبو هندوانو سرهند کې دحضرت مجدد الف ثاني رح دمزاربیحرمتي اودهغه رنګولوهڅه وکړه، په غبرګون کې یې دافغانستان د هغه وخت حکومت هند ته رسماً احتجاج و کړ او هم دهندوانو دیاد ناوړه حرکت پرضد په افغانستان او پاکستان کې خلک په قهر اوغوسه شول، د افغانستان جنوبي ولایتونو او دهغو سره په ملحقه قبایلي سیموکې دهندوانو د عمل پر ضد زیات نفرت او غوسه په نظر راغله ، دپاکستان سیاسیونود پوځ لخوا دانکار وروسته دقبایلو او دفغانستان دجنوبي خلکو دهندو ضداحساساتونه ګټه پورته کړه او دقبایلي رضاکارو په نوم دافغانستان دجنوب او قبایلونه زرګونو په شمیر رضاکار کمشیر جهادته تشویق کړل، دجنوبي ولایتو دخلکو په ترغیب او تشویق کې دکابل دقلعه جواد حضرت صاحبانو کردار هم ډیر مهم و، زکه هغوی غوښتل د هندوانو څخه دخپل نیکه ( امام مجدد الف ثاني رح) دمزار دبیحرمتۍ انتقام واخلي ،په دې توګه د زرګونه قبائلیانو او افغانانوپه لیږلو کې دهغوی کردار هم وو، لنډه داچې افغاني او قبایلي رضاکارومظفر اباد کشمیر دهندوانو څخه ازاد کړاو هندي پوځیان دمظفرآباد اوشاوخواسیمونه ووتل ، وروسته پاکستاني پوځیان کشمیرته ورغلل او واک یې درضارکارانو خپل لاس ته کړ او کرار کرار یې قبایلي رضاکاراوافغاني مجاهدین خالي سلاح کړل بیرته خپلو سیموته تش لاسونه واستول ،هغه مهال راهیسې پاکستان دکشمیر په یوه برخه واک لري کومې ته چې دپاکستان واک لاندې کشمیر ویلی کیږي او هغه بله برخه یې ( مقبوضه کشمیر سري نګر)دپیله دهند سره ده.

### د۱۹۶۵ کال جنګ

په کال ۱۹۶۵ کې هندوستان یو واربیا پر پاکستان برید وکړ اودپاکستان سرحدي پولې یې ماتې کړې ځوکوانه یې ترسیالکوټ ورسیدل ، په مقابل کې پاکستان هم دځانه کلکه دفاع وکړه او په خاصه توګه دپاکستان هوائي ځواک دسرګودې نه دهندوستان په شوبلو اوټانګونو پریکنده بریدونه وکړل او تخریب کړل ،په سبب یې دهند پرمختګ تم شو اوپاکستان دهند په ځواب کې دکشمیر پراستقامت حمله وکړه او ځواکونویې (تتوال پونچه) اویوشمیر نورې سیمې لاندې کړې، دي جنګ ترلسو ورځو دوام وکړ بالاخر دواړه لوري بیرته په شا شول

### د۱۹۷۱ز جنګ

دپاکستان دځینو متنازعه سیاسي کړنو پر وجه مشرقي پاکستان( چې اوس بنګله دیش په نوم جلا هیواد دی) کې بنګالي توکمه قوم پاکستان څخه دبیلتون غوښتنې تحریک پیل کړتردې پورې چې هغوی ددازادۍ ترلاسه کولو لپاره وسله

هم پورته کړه،هند ته په دې سره لوی فرصت اوچانس په لاس ورغی، او ځان په ګټه یې تري نتیجه هم ترلاسه کړه اودمشرقي پاکستان دازادۍ له تحریک نه یې پوځي ،سیاسي او اخلاقي ملاتړاعلان کړ،هوائي ځواک یې دبنګال په ډاکه کې (چې اوس دبنګله دیش پلازمینه ده) پاکستاني پوځ باندې بریدونه پیل کړل اوهم یې پلي ځواکونه بنګال ته واستول پاکستان ددې په ځواب کې په کشمیر کې بریدونه شروع کړل او ځیني سیمې یې ورنه لاندې کړې داچې په بنګال کې پاکستاني پوځ ډیر لبر مقاومت وکړ او جنرال نیازي په مشرۍ ۹۰۰۰۰زره پوځیانویې وسلې په زمکه کیښودې او هغوی ټول دهند دپوځ لخوا قیدیان کړای شول؛ دهغوی د ژوند ژغورلو لپاره امریکااوچین د پاکستان څخه دجنګ بندولو غوښتنه وکړه، پاکستان دهغوی په غوښتنه جنګ بندۍ ته اماده شو، په دې سره هندوانود یوپاکستاني جنرال نه په یوه خودساخته لوظنامه لاسلیک واخیست

[چې ګواکي پاکستان دهند په وړاندې مات شواو وسله یې په زمکه وغورځوله] دخپل شکست په منلو پاکستان هغه سیمې بیرته هندته وسپارلې کومې چې کشمیرکې دهندڅخه لاندې کړې وې خومشرقي پاکستان بیرته پاکستان ته دسپارلو په ځای دنړۍ په نقشه کې خپلواک هیواد په توګه ځای شو اوپه دې سره دنړۍ ترټولو لوی اسلامي هیواد (پاکستان) په ۲ هیوادونو وویشل شواومشرقي پاکستان( بنګله دیش له اوسني (مغربي پاکستان) دواک نه ازادې ترلاسه کړه

دیادونې وړده چې هند سره دپاکستان ۹۰زره قید پوځیان وروسته ددواړو ترمنځ دشمله تړون په ترڅ کې تدریجا، تدریجا دهند لخوا پرېښودل شول

په ۱۹۸۹زکې هندي کشمیرکې دهندي واک پخلاف دکشمیریانو لخوا دازدۍ جنګ پیل شو اوپه ۱۹۹۹ زکې دهندوستان دصدراعظم واجپای اوپاکستاني صداعظم نوازشریف ترمنځ لاهور کې داعلانِ لاهورپه نوم یوتړون لاسلیک شوکوم چې (دلاهوراعلان) د دواړو هیوادونود پارلمانو لخوا هم تائید اوتوثیق شو

په ۱۹۹۹زکې دواجپای اونوازشریف په زمانه کې دپاکستان پوځ کارګل ته په تلو دهندي پوځ څوپوستې اوسنګرونه ونیول په دې سره یوځل بیا دواړه لوري سره ښکر په ښکرشول اوپه مقابل کې هند پر

پاکستاني پوځ هوائي اوزمکني بریدونه وکړل هغه مهال پاکستان دهند یوه جنګي الوتکه نسکوره کړه اویوپیلوټ یې ژوندی اوبل یې مړونیو، لیکن داجنګ ددواړو ترمنځ ترکارګل محدود و، نورو سیموته ونه غځیده دپاکستان له اړخه ددغه جنګ مهم کردار پرویزمشرف و، دهغه او دهغه مهال له صدراعظم نوازشریف ترمنځ دکارګل جګړې په سر اختلاف راغی او بالاخر مشرف په نوازشریف کوه دتاه وکړه او ټول واک یې د خپل ځان کړ

په کال ۲۰۰۱ز کې ددواړوهیوادو ترمنځ دکارګل په سرپه یوبل دبري ددعوو اوناندریو سلسله ترهغه پورې روانه وه چې دپاکستان دپوځ مشر جنرال مشرف (دکارګل جنګ کلیدي کردار)هند ته لاړاو په اګره کې یې دواجپای سره ولیدل دکومې رسمي لوظنامې دلاسلیکولو امید هغه مهال ختم شو کله چې دواړه لوري کومې حتمي هوکړې ته سره ونه رسیدل

په ۲۰۰۱زکې دهند واک لاندې کشمیرکې داسمبلۍ په ودانۍ حمله وشوه او پکې ۳۸تنه ووژل شول، په ۲۰۰۱ دسمبرپه ۳مه دهلي کې دهند په پارلمان برید وشو پکې ۱۴تنه ووژل شول هندیې پړه په پاکستان واچوله په ۲۰۰۷زکې دهند په یوه اورګاډي باندې په حمله کې ۳۸ کسان ووژل شو

په ۲۰۰۸ز دنومبرپه ۲۶مه دهند په مشهور ساحلي اوصنعتي ښاربمبئي کې داورګاډو په تم ځای ،څلور ستوریزهوټل اودیهوادنوپه یوه کلتوري میله بریدونه وشول چې تر۶۰ساعتونویې دوام وکړاوپکې ۱۶۶کسان ووژل شول هندیې پړه په لشکرطیبه واچوله

په ۲۰۱۶جنوري کې دهندپنجاب ایالت دهندپه هوائي ځواکونو بریدونه وشول ترڅلور ورځو یې دوام وکړاوپکې ۷هندي پوځیان ووژل شول او۶جنګیالي ووژل شول

۲۰۱۶زدستمبرپه ۱۸مه نیټه دهند ترولکې لاندې کشمیرکې په یوې پوځي هډې باندې برید کې ۱۹کسان ووژل شول چې ورسره یوځل بیا د دواړو اړیکي ترینګلي شول اوهند دځواب ګواښ وکړ

۲۰۱۶ ستمبر په ۳۰مه دهند له لوري دعوه وشوه چې ځواکونه يې دخفيه عملياتو لپاره دپاکستان ترولکې لاندې کشميرته ننوتي اوهلته يې دترهګروګڼ مرکزونه نړولي اوبيا بيرته دکوم مزاحمت نه پرته را ستنانه شوي ، ليکن پاکستان تردې مهاله ددغه ډول عملياتو دمنلو څخه انکارکوي اودهند تبلغاتي پروپاګند يې بولي

د۲۰۱۹ ز دفبرورۍ په ۲۴مه دهندي کشمير په (پلوامه) نومې سيمه کې دهندنيمه پوځيانو په يوکتار موټربم بريدکې ۴۴ پوځيان ووژل شول، دا د۱۹۸۹ زکال وروسته په هندي کشميرکې يوه لويه حمله وه ، په ځواب کې يې هند دفبروي په ۲۶مه نيټه بالاکوټ کې دکشميري جنګياليو په يومرکزبريدونه وکړل چې دپاکستاني رسنيو په قول کوم زيان يې ندی اړولی

۲۰۱۹ دفبروۍ په ۲۷مه نيټه هندوستان دهندوستان دوه جنګي ( مګ۲۱) الوتکوغوښتل پاکستان کې بياځيني اهداف په نښه کړي خوداځل دپاکستان هوايي ځواک دتيارسۍ په حال کې و، ژريې دهند دوه جنګي الوتکې نسکورې کړي اوهم يې د يوې الوتکې پيلوټ ژوندی ونيو ، دې بريد سره پاکستان نړيوال اوهنديان رښتيا هم حيران کړل اوهم يې هند په دې فکر مجبور کړل چې هيڅکله پاکستان کمزوری حريف يا سيال ونه ګڼي

## ايا کشمير دواړوته حياتي اهميت لري؟

هو! کشمير دواړو ته حياتي اهميت او ارزښت لري، په دې سربيره چې کشمير دنړۍ ښکلې اوسمسوره اراضي لري دواړو هيوادونو لپاره په ستراتيژک اهميت علاوه دښکلو درو اولوړو غرونوڅخه يې شپږ لوی سيندونه هم بهيږي چې دواړوهيوادو پنجاب ايالتونوکې تويږي او د يوې نړيوالې لوظنامې او تضمين له مخې دکشمير درې سيندونه( جهلم ،چناب اوروای) دپاکستان برخه دي او دپنجاب ايالت زمکې خړوبو اودري (توی ،راس ندي او سروسيند) په هندي پنجاب کې تويږي او هغه خړوبوي ، داچې دپاکستان په لور بهيدونکي سيندونه هم دهند واک لاندې له کشمير تيريږي، هندوستان وخت په وخت کوښښ کوي چې ځای په ځای اوبه مهارې کړي خوداچې دواړو هيوادو ترمنځ داوبو دويش تړون په نړيواله سطحه تضمين لري ،پاکستان دهندلخوا داوبومهارولو ګامونه په نړيواله سطحه ننګوي او په نړيوال فشارهند مجبوروي ديته چې هغه خپل په پټه پيل کړي کارونه بند کړي ،په مستقبل کې داسې انديښنې شته که هند همداسې خپلوهڅوته دوام ورکړي پاکستان به داوبو دسخت کمښت سره مخ شي په دې وجه هرلوری په کشمير کې د خپل ،خپل حق نه په شاکيدونکي دي.

## دهند اوپاکستان دپوځي ځواک پرتلنه

پاکستان اوهند هغه دوه دښمن ګاونډي هيوادونه دي چې دواړه ترژامو په وسلو مجهز اوسمبال دي او هم اتومي ځواک لرونکي سيالان دي، که څه هم هندوستان دنفوسو له پلوه نړۍ کې دوهم سترهيواد دی او دنړۍ ټول خلک که په شپږو برخووويشل شي ،په هغوکې يوه برخه به دهند راووځي اوپاکستان بيا د دوه سوه مليونه وګړوهيوادی، کله چې په نړيواله کچه دهندوستان اوپاکستان دپوځي ځواک دتوازن او پرتلنې خبره راځي ، هندوستان دپاکستان څخه وړاندې دی، دهغوارقامولـه مخې چې په ۲۰۱۷زکې دګلوبلفائرپاور څيرونکې اداري لخواوړاندې شوي دنړۍ په سطحه هندوستان څلورم لوی پوځ لري، اوپاکستان بيا دنړۍ ديارلسم لوی پوځي ځواک دی، په دې ګټه ګورۍ کې داسلامي هيوادو له منځه ترکيه اومصرهغه دوه اسلامي هيوادونه را وځي چې دپوځي ځواک له پلوه دپاکستان څخه وړاندي دي

نړيوالې څيړونکې اداري(ګلوبلفائرپاور) په ۲۰۱۷زکال کې مندلې چې امريکا دنړۍ ترټولو لومړی مجهز لوی ځواک دی اوهرکال پخپله دفاع باندې ۵۸۷مليارددالرمصرفوي، دوهم روسيه چې ٤٤/٦. مليارد ډالره دفاعي بوديجه مصرفوي،دريم چين (۱۶۱مليارد ډالر بوديجه لري) څلورم هند ( ۵۱- تر۵۵) مليارد ډالرمصرفوي) البته په دې څيړنه کې اتومې وسلې ندې شمارل شوې ځکه هغه په مروجه جنګي وسلو اواوجنګي توکوکې نه راځي، مروجه جنګي وسائلو اوتوکوته په کتلو دهند او پاکستان ترمنځ په موازنه کې هندوستان د ۲زره نه زياتې جنګي الوتکې لري،او دموجوده پوځ شمير يې ۱۳لکه دی اوپه دې علاوه نيمه پوځ يا هغه چې په بيړنيوحالاتو اوداړتياپه وخت کې دپوځ مرستې لپاره غوښتل کيږي شميريې اته ويشت لکه دی ،هند۴۴۰۰ټانګونه،درې طياره وړونکې سمندرې بيړۍ ۱۶ اوبتلونه او دوه سوه نه زياتې وړې سمندرې بيړۍ لري دهندو وروسته فرانسه، برتانيه، ترکيه،

جرمني، مصر، اسرائل، او دجنوبي کوريا، نومونه راځي پاکستان دنړۍ ديارلسم لوى پوځي ځواک دی اودفاعي بوديجه يې ۷د۔ نه تر۱۰ مليارد ډالرده، دموجوده اوبوخت پوځ شميريې ۶ لکه نه زيات دی او دنيمه پوځيانو شميريې درې لکه دی او يو زرشاوخوا جنګي الوتکې لري او درې زره ته قريب ټانګونه لري پاکستان سره طياره وړونکې بيړۍ نشته البته ۱۹۰ وړې سمندرې بيړۍ او ۷اوبتلونه لري خوپه دغه فهرست کې اسراييل چې د۶۰نه تر۸۰لکه وګړو هيواد دی دنړۍ نهم لوی پوځي ځواک دی چې داد اسلامي اوعربي نړۍ لپاره دشرم اوخجالت ځای دی

دفبرورۍ په ۲۸ مه نيټه دپاکستان صدراعظم عمران خان دپارلمان ګډې غونډې ته وينا کې وويل : دښه نيت ښودو پخاطر دجمعې په ورځ دهند نيول شوی پيلوت به دبند څخه خوشي کړي دکتونکوپه باور دا دپاکستان لخوا دهند غوسې سړولوکوښښ و اوغواړي په دې ګام سره د هندعامه ذهنيت تغير کړي کوم چې هلته دوړاندې نه ويشلی دی دهند داپوزيسيون ۲۱ سياسي ګوندونو په صدراعظم مودي تور پورې کړ ی چې هغه دجنګ سپرغيو په شيندلو سره غواړي په سياسي لحاظ دخلکوملاتړ ځانته جلب کړي اوپه پارلماني ټاکنوکې زياتې څوکۍ ترلاسه کړي په پاکستان کې بيا برعکس ټول سياسي او ديني ګوندونه که څوهم عمرانخان ددرغليواوجعلي ټاکنوپه وجه دجعلي صدراعظم بولي خو په دې معامله کې ټول دحکومت اوپوځ سره ودريدل او دهندوستان په مقابل کې يې متحد دريځ نړۍ ته وښود

وړاندې ياده شوه چې جنګ ته دهند په لمسولو کې اسراييل رول لري اوهغه هند تشويقوي چې په هندي کشميرکې دبيلتون غوښتونکو مسلمانانو دځپلو لپاره له هغو تاکتيکونو او تجربونه ګټه پورته کړي کومې چې اسراييل په فلسطين کې دفلسطيني ازادۍ غوښتونکو خلاف کاروي په دې اړه د نړيوالو چارو متخصص ژونارلست رابرټ تازه انګشاف کړی دی چې داسراييل لخوا هندي پوځيانوته باقاعده روزنه ورکول کيږي چې هغوی څنګه کشميري بيلتون غوښتونکي مسلمانان وځپي؟ په دې لړ کې مشهور پاکستاني ژورنالست (حامد مير) دعوه کړې چې داسراييل يونيټ ورک په افغانستان کې هم شتون لري کوم چې دکابل حکومت او هند سره مرسته کوي نوپه دې توګه ويلی شو چې دهند اوپاکستان ترمنځ اوسني جنجال ترشاه بهرني ابعاد هم شته په خاصه توګه اسراييل پکې لاس لري

## ايا دپردې ترشاه کوښښونو جګړه مهارکړه؟

که څه هم پوره روښانه نده چې په څو راتلونکو ورځوکې ددواړو ترمنځ څه حالت رامنځته کيدای شي خوسملاسي دنړۍ دځينو مؤثرو هيوادو په کلکه غوښتنه دواړه لوري په خاصه توګه هندوستان دکوم بل ستربريد په پوزيشن کې نه ښکاري، هغه هيوادونه چې د دواړو لوريو دقهرجنو احساساتوپه سړ ولو کې مهم رول اداء کړ امريکا، روسيه، برتانيه اوترکيه وه هغوی دپردې ترشاه په هندوستان باندې فشارواچوه چې دجنګ په ځای دمذاکراتو د لارې دستونزو حلولو کوښښ وکړي دهمدې لپاره روسيې د دواړو هيوادونو ترمنځ دمنځګړيتوب وړانديز وکړ نو يقيني ده چې دپردې ترشاه روانوکوښښونو مثبت نتايج ورکړل



د سیاسي کتونکو په اند په نیږدي وخت کې به په یوبل بریدونه ونکړي او دیپلوماتیکوهلوځلو دلاري به هند په پاکستان دفشاردېرولو کوښښونو ته دوام ور کړي دهمدې لپاره دفبرورۍ په ۲۸ مه دپلوامې برید په اړه هندي حکومت په دهلي کې دپاکستان سفارت خانې ته د اسنادو اوشواهدو یوه دوسیه سپارلې په کومه کې چې د جیش محمد او مولانا مسعود اظهر په اړه د تورونواسناد شتون لري، ممکن هند به یوځل بیا دملګرو ملتونو امنیت شورى دروازه هم وټکوي او په تورلیست کې دمولانا اظهر دنوم شاملولوغوښتنه تکرار کړي کومه چې وړاندې څوځله امنیت شورۍ کې پورته شوې اوهرځل دچین لخوا دویټو ځواک په کارولوبې اغیزه ګرځول شوې... زکه چین په سیمه کې دهند په مقابل کې د پاکستان قوي ملګری هیوادد‌ی .

## برى چا ترلاسه کړ؟

اوس پوښتنه داده چې کوم لوري وګټله اوکوم وبایلله؟ اوکه سیالې یا مقابله په مساوي ډول پای ته ورسیده؟ په کومه ورځ چې هندي الوتکې دپاکستان حدودو ته ننوتې او بالاکوټ یې بمباردکړ رسنیوکېهند دخپل دبري لاپې شاپې کولې اودا دپاکستان لپاره دخجالت نه ډکې شیبې وې خوکله چې په سباته یعنې دفبرورۍ په (۲۷) دهند لخوا دپاکستان دحدودو څخه بیاسرغړونه تکرارشوه ،پاکستان په ډېر مهارت دخپل ایف ۱۷ (چې دچین په مرسته یې خپله جوړوي) دهند دوه میګ ۲۱ الوتکې نسکورې کړې ،په دې سره نه یوائې دهند ټولې غورې پرې په سیند لاهو شوې بلکې په نړیواله سطحه هم پاکستان په پوځي ډګر کې د خپل ځواک او صلاحیت امتحان ورکړ، البته دپاکستان په دې دعوه [چې دفاع لپاره لوى دفاعي جال لري] هنوز هم باورکم دی زکه په ۲۰۱۱ زکې دامریکا طیارې هم په پټه تر ایبټ ورسیدې او هلته یې شیخ اسامه شهید کړاو بیرته دکومې ستونزې پرته لاړې او پاکستاني ځواکونو ناخبرې وښوده ، په ورته شکل دا وارهم چې هندي الوتکې په پټه تربالاکوټ ته راغلې اواهداف یې په نښه کړل او لاړې په دې سره یقیناً شناندي د پاکستان دفاعي توانمندۍ په باب پوښتنې لري او دپراخ دفاعي هوائي جال درلودو دعوې ته دشک په نظر ګوري.

# مه غوسه کيږه !!

یو صحابي د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې عرض وکړو: چې څه نصیحت راته وکړه.
مبارک صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: غصه مه کوه .
هغه څو ځله تکراري د نصیحت کولو غوښتنه وکړه او حضور صلی الله علیه وسلم هر ځل ورته وفرمایل: غصه مه کوه.
(بخاري ٦١١٦)
د خان د حفاظت لپاره لاندی ذکر یاد کړی او وظیفه یی وګرځوی
څوک چه هر سهار او ماښام دری ځله دا لاندی ذکر ولولی نو دی کس ته به هیڅ شی ضرر ونه رسوی (که هغه دښمن وی او یا پیری (جن) وی او یا بل ضرر رسونکی حیوان او خزنده وی
»بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لاَ يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شيءٌ فِي الأرضِ وَلاَ فِي السمَاءِ وَهُوَ السَّميعُ العَليم« : ژباړه : د هغه الله ج په نوم چې له نامه سره یې هیڅ شی په ځمکه او آسمان کې ضرر نه رسوي ، او هغه ښه اوریدونکی ، ښه پوه دی.
حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه روایت نقل کړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: کوم بنده چې په هره ورځ کې سهار او ماښام « بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي.... » دری ځله ووایي نو هغه ته به هیڅ شی ضرر ونه رسوي.
مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُولُ فِي صَبَاحِ كلِّ يَوْمٍ ومَسَاءِ كلِّ لَيْلَةٍ: **بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لاَ يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شيءٌ في الأرضِ ولا في السماءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعلِيم، ثلاثَ مَرَّات، إلاَّ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْءٌ** » (رواه أبو داود، والترمذي وقال: حديث حسن صحيح).
او د ماښام پر مهال دا ذکر ویل هم له ضرر څخه د بچ کیدلو ذریعه ده : **(أعُوذُ بِكَلماتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ منْ شَرِّ ما خَلَقَ)**
(رواه مسلم).
ژباړه : د الله پاک په بشپړ کلام سره د هغه د مخلوقاتو له شر نه پناه غواړم.
رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو کس راغی چې لړم چیچلی وو نو هغه (صلی الله علیه وسلم) د دغو کلماتو ویلو ارشاد ورکړ



# زموږ لومړنی اړتیا څه ده؟!

د عابد لیکنه

نن درسره یوه داسې موضوع شریکوم چې شاید په ظاهره درته ډېرارزښت ونه لري، خو زما دډېرو کلونو دتفکر تجربه او نتیجه ده، موږ چې دکومې داعیې او مقصد لپاره په کوم قیمت مبارزه ترسره کوو دا ایجابوي چې هدف ته درسېدو یا په لنډه درسېدو په غرض ډېرې وړې نکتې ته هم متوجه شو او داسلامي مسؤلیت له مخې یې عملي کړو، په تېره بیا چې یوډېر مهم امر یا دفوت شوي فرض اعاده وي .

داچې وایو پراګنده او شیندلې هڅې چې هر هر څوک یې ترسره کوي نتیجه نه لري، ترڅو یې مرکزیت اودسوق الجیشي ـ هسته او اداره موجوده نه وي چې دهڅو مؤثریت اونتیجه پرې مرتب ده، همدا راز که مرکزیت او اداره موجوده وي، خو کارونه او هڅې یې دیوه منشور له مخې نه وي، یا په بل عبارت دعقیدې لپاره نه! بلکې دخپلو کړنو او کارونو لپاره یوه داسې لایحه ، اصولنامه، او قانون ونه لري چې له واړه ترلویه اوله لویه تر واړه په ټولو یو ډول عملي شي ° هم به یې هڅې نتیجه ونه لري اوهم به یې مبارزه نتیجې ته درسېدو په لحاظ ډېره بطئ وي اویا شاید ونه رسیږي .

داسمه ده چې اخلاص ډېر ضروري دی، په هرکار او هروخت کې ممدوح دی ، ولې اصولو ته اخلاص اخلص الاخلاص دی . په هرکار کې اخلاص نغده نتیجه او مثبتې پایلې لرلی شي، خو بې مهاره اخلاص چې په اصولو او چوکاټ کې نه وي بې ځایه اخلاص بللی شو، په دې معنی چې په کوم ځای کې دهڅو شدت او تیزي ته اړتیانه وي هلته به اخلاص دوخت ضیاع وي .

چې دیوکار په ترسره کولو کې اصل اوقاعده نه وي، بلکې مشخص نظر یادشخص شخصیت دکارونو په ترسره کولو کې داصل ځای نیولی وي اوپه تمامه معنی په خپلو کړنو کې خپلواک وي° ددې شخص په نه شتون اوعدم سره به دکلونو هڅې بې نتیجې او هلته دبل دفکر او رائې په راتلوسره بل رخ پیداکوي چې تېرې هڅې به عبث وي .

که غور وکړو په یوه ټولنه، تحریک، تنظیم او هر چوکاټ کې راجمع خلک به دهمدغه چوکاټ او اجتماع په کارونو او افرادو ډېرې نیوکې او انتقادونه لري، بلکې دهرې طبقې اودرجې افراد که هغه لوړ رتبه وي اوکه ټیټ رتبه، بېلابېلې نظریې او مختلفې طرحې لري، په داسې صورت کې نه دټولو انتقادونه دفع کېدای شي اونه هم دټولو طرحې دعملي کېدو وي ، ددغو انتقادونو او نیوکو مخنیوی به یواځې او یواځې په هغه صورت کې موجود وي چې متفقه منشور ، مقررات یاپه بل عبارت مدون قانون موجود وي او ټول یې عملي کېدو ته متعهد شي . همدا اړتیا ده چې په نړۍ کې حکومتونه بېلابېل جوړښتونه خپل کارونه او اداره په تدوین شوي قانون ترسره کوي او ددغو اصولو او ضوابطو په مراعت سره ګډوډي او خپلسرې پکې نه پېښیږي، البته اسلامي حکومت باید خپل دغه مدون قانون دشرعي لارښوونو په رڼاکې تدوین کړي .

دمسلمانانو ترمنځ کېدونکو عهدونو ته په قرآنکریم کې ځای ځای اشاره شوې او ډېری تفسیرونو پرې تصریح کړې :

الله تعالی فرمایي : ﴿وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا ﴾ سورة النحل ۹۱ تفسیر ابن عباس کې راځي {وَلاَ تَنقُضُواْ الأَيْمَان} يَعْنِي العهود فِيمَا بَيْنكُم {بَعْدَ تَوْكِيدِهَا} تغليظها وتشديدها دايت ظاهر ښيي چې دا ټولو عهودو ته شامل دی چې د الله اودبنده ترمنځ وي اوکه په خپله دبندګانو ترمنځ وي، دغه راز په سورت انعام کې الله تعالی فرمایي {وَبِعَهْدِ الله أَوْفُواْ ذلكم وَصَّاكُمْ بِهِ } [ الأنعام : ۱۵۲ ] اوپه سورت اسراء کې فرمایي {وَأَوْفُواْ بِالْعَهْدِ إِنَّ العهد كَانَ مَسْؤُولاً } [ الإسراء : ۳٤ ] په سورت فتح کې فرمایي چاچې کړی تړون اوعهد مات کړځان ته پرې زیان رسوي اوکه چا وفا پرې وکړه الله تعالی به پرې ستره بدله ورکړي، الله تعالی فرمایي : { فَمَن نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنكُثُ عَلى نَفْسِهِ وَمَنْ أوفى بِمَا عَاهَدَ عَلَيْه الله فَسَيُؤْتيهِ أَجْراً عَظِيماً }[الفتح : ۱۰]

مونږ وینو چې په ډېرو حکومتونو، ټولنو، مؤسسو، شرکتونو او دفترونو کې چې کارونه منظم وي اودشخص په بدلون او لړې کېدو سره پکې خنډ نه واقع کیږي عمده علت یې هغه منشور قانون او دطرزالعمل لایحې ته تول په ټوله کې وفا او تعهد وي، چې دهمدې غرض لپاره جوړه شوې وي .



اود دغو قوانینو او مقرراتو رامنځته کول نه یواځې داچې کوم شرعي مشکل نه لري، بلکې دیولوی هدف لپاره دفرعي امورو دتنظیم لپاره دغسې مقررات ټاکل خورا ګټور عمل دی ، په بخاري شریف کې روایت دی پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي " المسلمون عند شروطهم " [ رواه البخاري كتاب الاجاره] مسلمانان به خپلو تړونونو ته متعهد وي .

که یوځوک ووایي چې زمونږ قانون قرآن اوسنت دي اوپه دې ډول دوضعي قانون مخالفت کوي، نو باید وویل شي هیڅوک په خپل سر مخامخ له قرآن اوسنت څخه په هره مسئله کې په هماغه ګړۍ اجتهاد نه شي کولای او نه دا دهرچا کار دی، بلکې مسلمانان چې دکارونو دمنظم کولو لپاره کوم وضعي قانون جوړوي نو ښکاره خبره ده چې د قرآن او حدیثو په رڼاکې به یې جوړوي، له وضعي قانون څخه مخالفت خو به هلته په کار وي چې د غه اصل ته پکې کتنه نه وي شوي .

د قانون جوړونې دارتیا راز په دې کې دی چې دکارونو په ترسره کولوکې دګډ وډیو مخه نیسي، که یواځې یوه قاعده کېښودل شي چې زمونږ قانون به " دښو ترسره کول اوپه بدو کارنه لرل وي" نو د هرسړي مزاج او خواهش ته به لاره خلاصه وي او هرسړی به ښه اوبد په خپل تعبیر تعینوي .

داسلامي نړۍ وتلی عالم اوفقیه علامه محمدتقی عثماني رح په خپل کتاب " سیاسي اندونو" کې کاږي :

"...په اسلامي دولت کې درې ډوله قانون جوړونه کېدلای شي :

١ لومړی ډول داچې په قرآن کریم اوحدیثو کې کوم څرګند احکام ذکر شوي چې په تشریح اوتعبیرکې یې داختلاف هیڅ ځای نه شته، هغه دې دهیواد دقانون په توګه نافذ کړل شي او ددې دنافذولو دوه لارې دي : لومړی داچې دا احکام دتدوین شوي قانون (codified low) په بڼه تحریر اوپرمحکمو لازم وګرځول شي چې دتدوین شوي قانون سره سم پرېکړې وکړي ..."

نن دخلکو دبدو عملونو او ناسمو کړنو له امله شونې ده، د نامدون قانون په نافذلو کې بدو اعمالوته لارې پرانستل شي اوله امله یې ډېرې نیمګړتیاوې رامنځته شي، نو ځکه اوس مهال قانون تدوینول او نافذول ډېر مناسب دي او څرګنده ده چې دداسې کار دپاره دتکړه علماوو یوه ټولګي ته اړتیا شته چې ترخپل منځې مشورو وروسته دا احکام په قانوني بڼه مدون کړي .

همدغه کار دعثماني خلافت په ورستیوکې دتکړه علماوو یولوی ټولګي کړی و . هغوی د "مجلة الاحکام العدلیه " په نوم حنفي فقه مدونه کړه او دا دډېرې مودې دپاره داسلامي هیوادونو کې دقانون په توګه نافذېدله، خو دداسې ډول تدوین دپاره ډېروخت ته هم اړتیا شته، نو ترکومه وخت چې قانون په مدونه بڼه جوړېږي ترهغو په عبوري توګه لومړی صورت هم غوره کېدلای شي .

دریم ډول قانون جوړونه دهغو مباح کارونو په اړه ده چې په قرآن او حدیث کې کوم ټاکلی حکم نه لري . اوس مهال چې په پارلمان کې کوم قوانین جوړېږي زیاتره له همدې ډول سره تړاو لري. دبېلګې په ډول درسمي مامورینو معاشونه، دمراعت قوانین، دښاروالۍ قوانین، دپوځ دنظم اوظبط په اړه قوانین او داسې نور ...

**نو دخپلې لیکنې لنډیز او مقصود به داسې رواخلو چې په اوس وخت کې مونږ " اسلامي امارت" داسلامي اصولو په رڼاکې دنظام چلولو لپاره مدون اساسي قانون ته سخته اړتیا لرو چې دنظام شېرازه پرې ولاړه وي او ګډوډې نه وي او دا کار محال نه دی، بلکې همدا اوس زمونږ ډېرو علماوو داسلامي نظام د ننیو ټولو خارجي او داخلي اړتیاوو په نظرکې نیولو سره داسلامي اساسي قانون په جوړولو کار کړی .**

اوس باید هغوی وپالل شي اوپه دې برخه کې یې ټینګه مرسته وشي، که دغه اړتیا له نظره وغورځوو، نو ښکاره ده چې په هیڅ صورت دګډوډیو مخنیوی نه شو کولای او نه هم په نن وخت کې له بلې لارې فتنې مهارولی شو،نو دمقرراتو تعین او بیا عملي کول په همدې پورې اړه لري ،فشل ، پراګندګي او ګډوډیو به هلته ډېره لویه ساحه نیولې وي چې اصول او مقررات تعین شوي وي، خو عمل نه پرې کیږي او همداسې دکاغذ پرمخ نقش پاته وي، دغسې حالت په یوه دولت او نظام کې معکوسې نتیجې راوړي اودبد حالت په لوري ځي، چې په نتیجه کې یې باور له لاسه ورکول کیږي، لګښتونه کیږي، وخت ضایع کیږي، کوم څه چې دنظم او کنترول لپاره مقررشوي هسې به عبس وي، او حالات به د وخت بادونه چې په هر لوري بیایي ځي به، نو نه به د اداره کوونکي حاکمیت وي، نه به داداري احترام، چې نه به بیا مشر اوکشر معلوم وي او نه به دکارونو پیل اوپای.

دغه راز اسلامي امارت دیوه اساس ، بنیاد او یا تحریک په حیث هم خپلو غړو او امورو دتنظیم او بقالپاره همدغسې منشور ته ډېره اړتیا لري، چې په همدې ډول ورته متعهد وي اوهمدغسې د خپلسریو مخه ونیسي او ترټولو مهمه داچې که په هیواد کې په راتلونکي کې هر ډول حالات راشي دهمدې منشور په برکت به ددې بنیادشمعه بله وي او دوخت طوفانونه به یې پېرۍ پېرۍ وروسته هم قربانۍ هیڅکله له منځه نه شي وړلای .

# جنایت پیشه گان حتما به کیفر اعمال می رسند

محمد داود مهاجر

عملیات مبارک شوراب در هلمند جواب اندکی از مظالم اشغالگران و مزدوران داخلی آنهاست و در حقیقت، به عدالت کشیدن سرکوب گرانِ مردم مظلوم است.

اگر به حملات وحشیانه و ددمنشانهء سالهای اخیر اشغالگران و اجیران زرخرید آن ها در مناطق مختلف کشور از فراه تا هلمند، قندهار، قندوز، میدان وردک و غزنی و بقیه نقاط میهن عزیز توجه و دقت لازم داشته باشیم، با وضاحت کامل یک نوع عملیات های خاص قوای خارجی به همراهی "صفریک ها" و قول اردوی "ظفرها" را مشاهده می کنیم که از تمامی معیارهای جنگی و مرزهای ارزش های انسانی عبور کرده و محض کشتن مردم بی دفاع، از جمله زنان و کودکان و چپاول دارایی این ملت مستضعف را محور عملیات های خود قرار داده اند.

و اگر باز هم به نوعیت عملیات های آنها نظری عمیق تر بیاندازیم، با یکسری عملیات های خطرناکی روبرو خواهیم شد که در حقیقت آماج محوری و مرکزی این نوع عملیات ها، خط قرمز ملت مسلمان افغانستان می باشد، یعنی از بین بردن مساجد، حمله به مدارس دینی، و بمباردمان محافل قرآنی و دستاربندی ها.

هرگاه از حمله به مدرسه های دینی در فراه، قندوز، کاپیسا و مدرسه یی که درین اواخر در ولسوالی نرخ ولایت میدان وردک هدف چاپه دشمن قرار گرفت (و نه تن از شاگردان خوردسال مدرسه به شهادت رسانده شدند) بگذریم، به قتل عام و کشتار بی مهابای مردم مظلوم، رو برو خواهیم شد که درین اواخر تظاهرات و راهپیمایی مردم میدان وردک در کابل بر علیه حملات وحشیانهء اشغالگران و مزدوران آنان، بیانگر اندکی از انزجار ملت مظلوم، نسبت به این ستمگران است.

اما جوانان سربکف اسلام، آنهایی که همّ و غم امت و ملت خود را بر دوش دارند، هیچگاه آرام ننشسته و انتقام خون هموطنان بی گناه خود را هر از گاهی از دشمنان گرفته اند و از داخل مراکز و مقرهای شان شعله های آتش و دود را بلند کرده، شمشیر عدالت را بر فرق ظالمان فرود آورده و آه مظلومان را با غیرت تاریخی خویش، تفسیر کرده اند.

أَيْنَمَا تَكُونُواْ يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ - النساء : ۷۸ . هر کجا باشید در می یابد شما را مرگ، و اگر چه باشید در حصار های مستحکم و بلند.

آری، سپاهان اسلام، جان بر کفانی که در حقیقت شلاق و تازیانه الهی اند و خداوند متعال به وسیلهء آنها ظالمان و ستمگران را عذاب می دهد، مرغان ابابیلی هستند که الله متعال ملت های مظلوم را به وسیلهء از خود گذشتگی های آن ها، نصرت می کند و به دل های غمدیده روزنه ای از امید باز می کند.

قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ - التوبه ۱۴ . با آن ها بجنگید؛ خداوند آن ها را به وسیلهء دستان شما عذاب می دهد و رسوا می کند آن ها را و شما را بر آن ها نصرت می بخشد و دل های مومنان را شفا می دهد.

دشمنان اسلام و ملت مسلمان باید از چنین صاعقه های الهی درس عبرت بگیرند و دامان خون آلود سفّاکان را رها کنند. زیرا در هر سوراخی جای بگیرند، از انتقام فرزندان صادق این دین و ملت نجات نخواهند یافت. نه آنها را حصار های بلند و ساختمان ها حفاظت می کنند و نه هلیکوپترها و هواپیماهای جنگی اشغالگران.

سربازان جان برکف امارت اسلامی و مدافعان حریم مساجد و مدارس و محافظان ذره ذرهء این خاک اسلامی، هیچگاه آرام نخواهند نشست و جواب ستم های فریب خوردگان را در فرصت های مناسب با مشت های دندان شکن خواهند داد.




# معیارونه ولې بدلیږي،

## دوی ولې مسیحي تروریستان نه ګڼل کیږي؟؟

شهیدزوی

د وحشي اسرائیلي فوځیانو له لورې په مسجداقصی کې پر لمونځ کونکو دنویو حملو او په نتیجه کې یې دلمونځ کونکو دټپي کېدو او دمتعصبو صهیونستانو له لورې دمسجد دبې ادبۍ دنویو پېښو په اړه مې څرک ته لکینه پیل کړې وه چې مازیګر مهال راته یو ملګري وویل په نوي زیلانډ کې په دوه جوماتونو وسله وال برید شوی دا مجمل خبر و ؛بیا مې دنیټ له لارې لږ تفصیل ترلاسه کړ او لږ ساعت پس یو ملګري ددې بوګنونکي برید هغه ویډیو هم راولېږله چې پوره لیدل یې زما په څېر دنري زړه لرونکو له توان نه بهر وه .

ربنتیا داده چې دسفاک قاتل اسلام او مسلمان دښمني له حده ډېره زیاته ده ؛ هغه نه یواځې دا چې بې وسلې، بې ضرره او بې ګناه هغه مسلمانان یې په خپلې عبادتخانې کې ووژل چې دده سره یې هیڅ شخصي- نزاع،جدال او دښمني نه وه بلکې دوژلو ترڅنګ یې په خپل لاس درامنځته شوي دې وحشت ویډیو یې هم دهغه کمرې له لارې کوله چې په خپلې خولۍ کې یې نصب کړی وه او دا ویډیو یې دانټرنیټ له لارې مخامخ ټولې نړۍ ته خپروله.

اول پریو مسجد دبرید خبر خپور شو بیا وروسته معلومه شوه چې برید پر دوه مسجدونو شوی او بریدګر هم یو نه بلکې زیات دي.

په برید کې دشهیدان شویو شمېر ۵٦ ته رسېدلی؛ د ټپیانو شمېر له ۵۰ نه اوړیدلی او ګڼ شمېر مسلمانان بې درکه دي چې ګومان کېږي دبریدګر نور صلیبي ملګرو به له ځان سره ژوندي بوتلې وي ځکه چې ملګرو او خپلوانو یې ورپسې ټول روغتونونه ولټول خو ویې نه موندل؛دولت یې هم تردې دمه په موندلو ندی توانېدلی.

دبنګله دیش دکرکټ ټیم چې همدې هېواد کې دکرکټ سیالۍ ته ورغلي و دې جومات ته دلمانځه د ادا کولو لپاره راروان و خو د هغوئ درارسېدو نه څو لمحې وړاندې دا پېښه رامنځته شوه او له نېکه مرغه چې ورته څه ضرر ونه رسېدلو.

دلویدیځ په رسنیو کې دا خبره عامه کړای شویده چې بریدګر یو داسې استرالیایې اوسېدونکی دی چې لویدیځ ته دنورو خلکو دراتلو سخت مخالف و او پدې عمل یې دخپل دې مخالفت اظهار وکړ چې داخبره داصل حقیقت دپټولو یوه ناکامه هڅه ده؛دا هم صحیح نده چې ګینې یو داسې سپین پوستی و چې دقومي تعصب پربنسټ یې پردې مسلمانانو برید کړی او وژلي یې دي .

په لویدیځو رسنیو کې داخبره هم کېږي چې شاید دا رواني مریض وي چې داهم په اصل عواملو دپردې راغوړولو هڅه ده .

اصل خبره دا ده چې دا بې له کوم شکه مذهبي تروریزم دی چې داسلام او مسلمانانو سره دسخت نفرت پربنسټ دښه سنجول شوي اوږد او پوخ پلان له مخې ترسره شوی؛ پخپله برید گر اعتراف کړیدی چې ددوه کلونو راهیسې پدې پلان بوخت وم .

جومات ته راتلل او بیا دلمونځ پرمهال په مسلمانانو ډزې کول هم ددې خبرې لوی دلیل چې برید دمذهبي دښمنۍ له امله رامنځته شوی دی خو بریدگر چې په خپل ټوپک کوم تاریخونه اوکلونه لیکلي دي هغه ټول هغه کلونه دي چې پکې صلیبیانو د مسلمانانو عامه وژنه کړیده او ورته یې ستر تاوانونه رسولي دي.

په ټوپک د ۱٦٨٣ نېټه لیکل شویده ؛ پدې نېټې دعثماني خلافت فوځونو دروم امپراتورۍ مرکز ویانا محاصره کړه چې دوه میاشتې دې محاصرې دوام وکړ؛ ویانا ته څېرمه دکالنبرگ غرونو کې دروميي امپراتورۍ عسکرو دجان ۳ م په مشرۍ کې ځانونه منظم کړل دعثماني خلافت پر عسکرو یې سخت بریدونه وکړل چې له امله یې مسلمانو ځواکونو ماتې وخوړه او ټول هنگري دمسلمانانو له لاسه ووت.

په ټوپک ۱٦٨٨ م کال هم لیکل شوی دی؛پدې کال کې عثماني خلافت دسلطان محمد ۴م دوره کې وغوښتل چې دسربیا بلگراد فتحه کړي؛ د بلگراد په فتحه کولو دعثماني خلافت په قوت کې ډېر زیاتوالی راتلو خو پدې جگړه کې مسلمانان غالب نه شول بلگراد فتحه نه شو او جگړه درومیانو په گټه تمامه شوه.

په ټوپک ۱۱۸۹ م کال هم لیکل شوی پدې کال صلاح الدین ایوبي رحمه الله دعکا ښار دفتحه کولو لپاره لښکر ولېږلو او دا ښار یې محاصره کړ چې دا محاصره ډېره اوږده شوه او تر ۱۱۹۱ م پورې دوام وکړ خو دا ښار فتحه نه شو او صلیبیانو هغه ۲ زره مسلمانان په شهادت ورسول چې امان یې ورکړی و.

دټوپک په یو اړخ ۱۵۸۱ م کال هم ثبت دی؛پدې کال کې دعثماني خلافت بحري ځواکونو د صلیبیانو ترمنځ په لیبانت کې جگړه رامنځته شوه چې پکې صلیبیانو دمسلمانانو ټول تجهیزات ونیول او جگړه دصلیبیانو په غلبې تمامه شوه .

په ټوپک ۱۷۷۰ م هم لیکل شوی؛پدې کال دروسانو او عثماني خلافت دځواکونو ترمنځ په کاجول کې سمندري جگړه رامنځته شوه چې پکې روسان غالب او مسلمانان مغلوب شول.

ددې ترڅنگ په ټوپکونو دصلیبي جنگونو ځانگړې نښې ؛ پدې جنگونو کې دشریکو شویو خپلو اتلانو نومونه او په ځانگړي ډول دهغو جنگونو نومونه هم لیکل شوي وو چې پکې صلیبیانو غلبه ترلاسه کړې وه.

صلیبي بریدگر چې له ځان سره گڼ ټوپکونه راوړي وو جومات ته په ننوتو یې دیو ډېر تجربه کار او داسې تن په څېر ډزې پیل کړې چې یې ښه عسکري زدکړې ترسره کړې وي او دداسې عملیاتو ښه ښوونه ورته شوي وي .

بیخي داسې نه ښکاري لکه په انسانانو چې ډزې کوي ته به وایې چې بې ساه څېزونه یې په نښه کړیدي چې نه پرې درحم کولو اړتیا وي او نه یې هم څوک پوښتنه کوي.

بیا ښه په اطمینان راځي دخپل موټر ډیگۍ خلاصوي په اطمینان ترې بل ټوپک را اخلي بېرته جومات ته ورځي او بې رحمانه ډزې پیل کوي،بیا جومات کې دننه ښه په اطمینان گرځي او چې ورته ټول خلک مړه معلومېږي نو وځي او په لار کې چې ورته کوم مسلمان په مخه ورځي ولې یې؛یوه مېرمن په مخه ورځي چې یې په مرمۍ وولي هغه په ځمکه پریوځي او د مرستې کولو لپاره آوازونه کوي خو دا وحشي قاتل بیا ورنیږدې کېږي او په سر سر یې ولي او په شهادت یې رسوي؛بیا یې چې کله خپل موټر راروان کړي نو دهمدې شهیدې مېرمنې پرجسد یې په بې رحمانه ډول دپاسه تېر کړ.

پرالنور مسجد دبرید نه لږ وخت پس دلن وډ مسجد باندې هم وسله وال برید وشو،عیني شاهدانو وویل یو تن جومات ته راننوت چې دموټر سایکل توره خولۍ یې په سر وه چغې یې وهلې خو څوک نه پوهېدل چې څه وایې،جومات ته په راننوتو یې ډزې پیل کړې چې دلته هم ګڼ تنان مړه او ټپیان شول.

دالنور جومات بریدګر برینټن ټانټ نومېږي او په خپلو څرګندونو کې ځان صلیبي سپاهي بولي .

خولنډه دا چې پردې دواړو جوماتونو بریدونو کې پدې خبرې قاطع دلایل شتون لري چې دا برید دیو استرالیایي مسیحي له لورې داسلام او مسلمانانو سره د سخت نفرت او دښمنۍ پربنسټ شویدی خو لا هم له ډېرو کمو پرته نور غربي مشران دا عمل تروریزم نه بولي او نه هم بریدګر تروریست ګڼي.

هغه امریکا چې دمسلمان په لاس یوه کوچنۍ دتاوتریخوالي رامنځته شوې پېښه هم تروریستي پېښه ګڼي دلته یې معیار بدل دی او ولسمشر ټرمپ دا دتشدد پېښه ګڼي خو دتروریستي عمل ګڼلو نه یې انکار کوي.

دلویدیځ رسنۍ چې داسلام او مسلمانانو دبدنامولو لپاره شپه او ورځ پرځان یوه کړیده او اسلام یې دخلکو په ذهنونو کې دتروریزم دوهم نوم ګرځولی اوس یې پدې پېښې کې هم ښه په لوړه پیمانه اسلام او مسلمان پرضد خپل نفرت او دښمني ښکاره کړه ددې پېښې دعادي ښودلو هڅې کوي،اکثریت یې له دې ځان ساتي چې دا پېښه تروریستي پېښه وګڼي،دبریدګر یواځې نوم او ځای ذکر کوي او هیڅ داسې نه وایې چې برید ګرمسیحي دی او خپل ځان صلیبي بولي.

بس همدا دلویدیځ دحاکمانو او رسنیو دنفاق نه ډکه څېره ده چې دداسې پېښو پرمهال راڅرګندېږي.

برید ګر ټول مسیحیان وو او دخپلې اسلام دښمنۍ اعترافونه یې هم کړیدی نو انصاف خو دادی چې هغه اقدامات چې دداسې پېښوپر مهال په اسلامي نړۍ اودنړۍ ګوډ ګوډ کې دمسلمانانو پرضد کېږي نو دلته هم باید وشي؛ پېښه دې یې مذهبي تروریزم وګڼل شي ؛ دوئ دې مسیحي تروریستان وګڼل شي ؛استرالیا باید دتروریستانوسره په مرسته کولو تورنه شي ؛ وربانديې باید بندیزونه ولګول شي؛ نورو هېوادونو ته داسترالیایانو په ورتګ بندیزولګول شي؛ بریدګرو چې دکومو تنانوسره تلیفوني تماسونه ټینګ کړي هغوئ ټول باید ونیول شي اوپه کوموځایونوکې چې دوئ درسونه ویلي هغه باید دتروریزم مرکزونه وګڼل شي اوبند کړای شي .

زموږ یقین دی چې دایوکار به هم ونکړي بلکې که دې وحشي قاتلانوته ستره سزا ورکول کېږي هغه به داوي چې زندان ته ولاړ شي ؛هورې ورته ښه اسانتیاوې برابرې شي او دځه مودې زندان تېرولونه وروسته بېرته ښه په عزت له زندان نه را آزاد شي.

دیادولو وړ ده چې په نوي زیلانډ کې پرمسجدونو تازه برید په لویدیځ کې پرجوماتونو او دیني مراکزو دحملو دپیل شوې لړۍ یوه تړېولو ستره او خونړۍ پېښه ده اوترې وړاندې هم په ګڼو هېوادونو کې په جوماتونو او دیني ښوونیځو مرکزونو وسله وال بریدونه شویدي خو دولتونو یې دمخنیوي لپاره هغسې هڅې ندي کړې څرنګه چې پکار دي.

دجرمني رسنیو له لورې په خپرو شویو اعدادو او ارقامو کې راغلي دي چې په ۲۰۱۰م کال کې په ۲۷ جوماتونو بریدونه شوي وو چې ۲۰۱۷م کې بیا دا شمېره درې برابر شوې وه؛په ۷۳ جوماتونو بریدونه شوي وو او ۹۵۰ مسلمانان هم تربریدونو لاندې راغلي وو.

پربرتانې کې د ۲۰۱۳م کال نه تر ۲۰۱۷ م کال پورې ۱٦۷ جوماتونه تر برید لاندې راغلي وو.




د امریکا په کیلي فورنیا؛ واشنګټن او هائیو، ټیکساس، فلوریډا، ورجنیا، مشي ګن او نیوجرسي ایالتونو کې پرګنو جوماتونو بریدونه شویدي.

همدا راز په کاناډا؛فرانسې او یو شمېر نورو هېوادونو کې هم پرمسجدونو بریدونه شویدي او ټول بریدونه دمسیحیانو او یهودیانو له لورې ترسره شویدي خو دا یو برید هم تروریستي عمل نه ګڼل کېږي؛نه یې دیهودیت او مسیحیت سره دربط خبره کېږي او نه هم دا دسخت دریځه یهودیت او مسیحیت زېږنده ګڼل کېږي.

او پرځای ددې چې دولتونه دداسې پېښو دمخنیوي هڅې وکړي او عاملین مجازات کړي برعکس دداسې پېښو اصلي عاملین مسلمان ګڼل کېږي او په ډېرو ځایونو کې خو دداسې بریدونو نه پس ځنې ځایې جوماتونه تړل کېږي او کله نا کله بیخي له منځه وړل کېږي چې دا دهغه لویدیځ منافقت،تعصب او اسلام دښمنۍ ډېر لوي دلیل دی کوم چې ځان بشر-یال،دیموکرات او دانساني مساوات علمبردار ګڼي.

څه چې ددې برید نوعیت ته وګورم راته داسې ښکاري چې دا د ډېر جور او ستر پلان له مخې شوی.

په لویدیځ کې اوس دمسلمانانو زیاتوالي او داسلام تېز خپراوي دیهودانو دتشویش سبب شوی او لویدیځ ته دمسلمانانو د راتلو او داسلام دخپرېدو دمخنیوي لپاره له خپل لورې هره هغه حربه په کار اچوي چې دنتیجې ورکولو تمه ترې کېدای شي ؛ شاید اوس په نوي زیلانډ یا استرالیا او یا هم کوم بل هېواد کې په چرچ یا ښوونځي همدې ته ورته حمله وشي او دلویدیځ رسنۍ (چې دیهودو په لاس کې دي) به یې د مسیحیانو نه دمسلمانانو انتقام وګڼي چې دا بیا دټولو مسیحیانو د راپورته کېدو او په لویدیځ کې دمسلمانانو دقتل عام سبب کېدای شي(خدای مکړه).

چې پدې کار کې به دیهودانو سره دامریکا دجاسوسو ادارو مرسته خامخا شامله وي.

نو لویدیځ کې مېشت مسلمانان باید ډېر دبیدارۍ او زیرکتیا نه کار واخلي او ټولو هغو اقداماتو نه ځان وساتي چې له امله یې پرضد په لویدیځ کې دنفرت فضا رامنځته کېدای شي .

همدا راز اروپایي دولتونه هم باید دډېر عقل نه کار واخلي او پرې نږدي چې یو ځل بیا دیهودو او امریکا دشومو پلانونو په لومو کې راګېر او خاوره یې دنورو دشومو اهدافو لپاره وکارول شي.

ليکوال: محمد آصف

# طالبه مبارک شه، تا وګټله!

یو وخت و، هغه چا چې د نړۍ د واکدارۍ دعوا یې کوله، ځان یې د نړۍ واکمن ګاڼه، غوښتل یې ټوله نړۍ یې د راج تابع وي، غوښتل یې ټوله نړۍ یې بنده ګي وکړي، غوښتل یې ټوله نړۍ یې فرمانبرداره وي، او غوښتل یې ټوله نړۍ یې "هو" ته "هو" ووایي او "نه" ته "نه!"

که داسې ونه کړي، د دوی ستر دښمن دی، نړۍ ته خطر دی، تروریست دی، ترهګر دی او د نړۍ په هر قانون کې د له منځه وړلو وړ دی!

" تورې" او "سپینې" ټاپې ورسره دي، د وهلو، تړلو او وژلو جواز ورسره دی!

قاتل هم دی او قاضي هم!

چا یې پر وړاندې د ودرېدو جرئت نشو کولای، ځکه دا یې د ځان د له منځه وړلو په معنا ګڼله.

خو د دې بلا پر وړاندې ته ودرېدې، ته یې پر خلاف را پورته شوې، ته یې موخو ته خنډ شوې، تا ورته "نه" وویل. په تش لاس دې د تیارې، ټانګ او توپ مقابلې ته را ودانګل.

نړۍ وخندل، ته ورته لېونۍ ښکاره شوې، ستا تش لاس او بې وسی پورې یې وخندل، له ژونده بې پروا ورته وبربښېدې، د "بلا" له زوره ناخبره یې وبللې، ستا بغاوت ورته خودکشي ښکاره شوه، ځينو ستا د خواخوږۍ په خاطر د تسلیمۍ مشوره در کړه.

خو ته له دې ټولو بې پروا وې، د نړۍ له خندا بې پروا، د "بلا" له زوره بې پروا، د دښمن له توپ و ټانګ نه بې پروا او د خپل تش لاس او بې وسی له ویرې بې پروا.

بې پیلوټه دې په ځار پسې لالهانده شوې، هتکړۍ دې په تړلو سترې شوې او پلورل شوې خولې دې په بد ویلو ستومانه شوې.

اوس نړۍ حیرانه ده، ګوته په غاښ ده، فکر کوي لکه خوب چېویني، باور یې نه راځي. هو، باور یې نه راځي چې هغه طالب دې له هغه خوني سېلابه ژوندی پاتې وي، باور یې نه راځي چې هغه طالب دې میدان ګټلی وي او باور یې نه راځي چې هغه طالب دې بدماشې نړۍ ته ماتې ورکړې وي.

خو دا خوب نه دی. هو، خوب نه دی؛ بلکې داسې حقیقت دی، چې هیڅوک ترې انکار نشي کولای.

تا وویل "د یو یو ماتولو پر ځای ښه ده چې ټوله په یو وار را وپرځاوو" هماغسې وشول.

د ټولې کفري نړۍ پر غرور دې پښه کېښوده، د ټولو شیطاني غرور دې تر پښو لاندې کړ، او ټول دې په یو وار را وپرځول. تا په یوویشتم قرن کې یو وار بیا عملاً وښوده؛ چې د ایماني قوت پر وړاندې نور ټول قوتونه پوچ دي، بې معنا دي او حنثی دي.

تا وښوده چې حق به همېشه غالب وي، که څه هم ټوله نړۍ یې پر خلاف وي.

ته د ازادۍ غوښتونکو حرکتونو ته یو ویړنده باب شوې، یو درس شوې او یو پیغام شوې. هو، د ازادۍ او خپلواکۍ پیغام.

هو، طالبه مبارک شه، تا وګټله!

# استشهاد د مینې راز

د انسانیت پیدایښت د انسان د آزموینې په موخه شوی تر څو هر انسان د امتحان په ډګر کې خپل زیار وباسي او برخلیک یې وټاکل شي چې یا به تل تر تله خوښي او یا ابدي عذاب وي.

د همدې آزموینو په لړ کې د څښتن تعالی له لوري په انسانانو بېلابېل حالتونه راځي چې ځنې حالتونه پکې د انسان د زغم وړ نه وي او انسان داسې فکر کوي چې کله به هم له دې حالت څخه روغ ونه ووځي خوکه یو انسان د څښتن تعالی په قدرتونو پوه شي او د هغه جل جلاله د مینې په راز باندې ځان وپوهوي نو کله به هم د الله تعالی آزموینه ورته عذاب نه ښکاري او هر ډول سرښندنې ته به چمتو ولاړ وي.

د بېلګې په توګه د مسلمانانو پر حریم د اشغالګرو سره جګړه د الله تعالی یو امر دی، دا امر انسانانو ته په داسې حال کې شوی چې که الله تعالی وغواړي نو هر ډول اشغالګر په یوه شېبه کې ختمولای شي خو دا امر یې انسانانو ته امتحان په موخه سپارلی دی، کله چې انسان د عقل په معیار دا امر وزن کړي نو خورا دروند ورته برېښي ځکه نني اشغالګر د اسبابو له پلوه ډېر مجهز دي خو کله چې یو انسان د الله تعالی په ژمنو پوره باور ولري او د څښتن تعالی په قدرت کې فکر وکړي نو په یوازې ځان هم د ټولو اشغالګرو مخ ته دریږي، د رب لقاء ته هوسیږي او د استشهاد په څېر ډالۍ ورته وړاندې کوي .

ځکه نوموړی په الله تعالی باندې مین شوی وي، د الله تعالی په هره ژمنه باور لري، هوډمن وي چې د الله تعالی لقاء ته به ځان رسوي، اراده لري چې د الله تعالی د دین دفاع وکړي او د هغه خوښي تر لاسه کړي او د الله تعالی په امتحان کې کامیاب شي

چې د همدې موخې د لاسته راوړنې لپاره بیا ورته سرې لمبې هم د سپرلي ښکلي ګلونه برېښي، د دنیا پروا نه لري، د خلکو له ملامتیا څخه نه وېرېږي او د خپل محبوب لقاء ته ځان رسوي چې د مینې دا راز هر څوک نشي درک کولی.

وروسته بیاد همدا مستشهد د استشهاد انتظار په ډېره تلوسه کې تېر کړي، د رب لقاء ته هوسیږي، ښه یې وي چې زر ورشم او تر هغه پورې له خپل دریځ څخه نه اوړي تر څو چې د خپلو وړاندینیو ملګرو په څېر د استشهاد له لارې خپله مینه رښتینې کړي او خپل رب ته په تحفه کې خپل سر وړاندې کړي.

دې حقیقت ته په کتلو سره ویلی شو چې:

استشهاد د مینې راز.

# دذا النون رحمه الله

## جالبه کیسه

ذا النون رحمه الله فرمايي:

يوه ورځ مې له کعبې طواف کاوه، په يوه ښځه مې نظر پريوت، په مخ او سترګو کې خدای عجيب را ښکوونکی ښکلا او نورانيت اينبی ؤ ، ورنيږدې شوم دراز په اړه مې ترې وپوښتل

مېرمنې انکار وکړ، او وه يې ويل، خپل طواف کوه!

خو ما پخپله پوښتنه اصرار وکړ، او ښځه مې خبرې کولو ته مجبوره کړه ، خپله خبره يې داسې پيل کړه :

دلوی اختر دقربانۍ لپاره مې خاوند له بازاره يو پسه راوستی ؤ، اختر او قرباني تيره شوه

يوه ورځ مې يو زوی بل ته وويل راځه هغه لوبه وکړو، کومه چې بابا دپسه سره کړې وه،

چاړه يې راخيستې وه، کشر ورته ملاست او مشر پرې چاړه تېره کړه، مور چې ورسيدو ډېره وينه يې ضايع کړې وه، او حق يې ادا کړ هغه بل زوی مې له ډاره دکوره نه ووتو،

مخامخ مو کور ته ګڼ ځنګل ؤ؛ چې هرډول بلاګانې پکې موجودې وې، په ګڼو ونو ننوتو

پلار يې چې خبر شو په منډه پسې لاړو؛ چې يو خو مو هسې هم دخدای رضا ته سپارلی دی چې دويم له لاسه ورنه کړ، هغه هم ځنګل ته پسې ننوتو.

زوی مو دفن کړ، خو هغه بل زوی او خاوند مې رانغلل، مازديګر شو، دماښام تياره شوه بيا هم ددوی درک نه ؤ

زه لاړم چې له دروازې نه يې لار وڅارم، چې راستانه شوم ومې ليدل چې دغيږې زوی مې هم له جګې مُورګی نه رالويدلی دی ايله پښې ټکوي ، دې هم زما په غېږ کې ساه ورکړه

پلار او زوی خو يې ځنګل وخوړل، تراوسه هم ژک ژوندي ورک دي، يوه لور مې واده شوې وه، هغه چې بل ښار کې ددې پيښو نه خبره شوه ټک زاره يې چاوده شوه، او پور يې پرې کړ،

اوس مې نو له خدای پرته بل هيڅوګ هم نه ؤ، خو هغه اوښکې چې ما بايد توی کړې وای ومې څښلې،

ياني صبر مې وکړ، ښايې دهغو اوښکو نور زما په څېره کې راڅرګند شوی وي، بل راز خو يې نه دی راته مالوم.

صلاح الدين صارم

# ... چا بازار موندلی نه دی!

هو!" له آزاره چا بازار موندلی نه دی" ډېرځله به مو دا متل اورېدلی وي او د ډېرو په حق کې به رښتیا درته ثابت شوی وي، داځکه چې دا دکانې کرښې دي اوهمدومره ثابت دي،خو داچې ما ولې دلته راوور ؟ او ولې مې خپله لیکنه پرې پیل کړه ؟! ځکه معنایې په هیواد کې دروان وضعیت ښه ترجماني کوله، نو هم مې لیکنه پرې پیل کړه او هم مې دلیکنې لامل شو .

یواځې په دې خاطر چې طالب پرې ځوریږي او صدمه ورته پرې رسیږي، دعامو خلکو کورونه، مدرسې، مکتبونه، کلینکونه او جوماتونه ورانول او ولسي وګړي شهیدانول به کوم منطق ،موفقیت، کومه توجیه او کوم انسانیت وي او چابه ترې بازار او ښه ورځ موندلې وي ؟!!

مونږ. پوهیږو چې دا به یواځې دکابل ادارې واک او اختیار نه وي، بلکې ډېر اختیار یې له امریکایانو سره دی، خو دطالب لپاره چې دوی پرې څومره خوښیږي او دخوښۍ اظهار پرې کوي نو سړی پوهیږي چې ټول په ټوله یې دوی ترسره کوي، په داسې حال کې چې ځان دهمدې ولس نماینده حکومت بولي، خو چې حقیقي نمایندګي یې طالب کوي، نو له اشغالګرو سره په ګډه یې وژني .

که ددې دوه سره ادارې له پیل نه تراوسه جاجونه واخستل شي نو له هماغه لومړۍ ورځې پرشا روانه ده، او هیڅ ډول پرمختګ او کامیابي یې نه شو لیدلی، ځکه ( له آزاره چا بازار موندلی نه دی) نو سړی پوهیږي چې له دې وروسته به یې دخپلو خلکو په وژلو او ځورولو کې څنګه ووینې ؟!!

په نظامي ډګر کې خو یې دامریکایانو په ګډون هیڅ نظامي جوړښت دطالبانو مقابله ونه کړای شوه او ورځ تربلې یې سیمې له لاسه وځي ، له طالب سره مخامخ دجګړې توان یې له لاسه ورکړی ، ددې په ځای چې په جګړه کې طالب ووژني دشپې په تیاره کې عام ولسي وګړي وژني اوڅومره یې چې پوښتنه شوې په یوه چاپه کې هم تراوسه طالب نه دی وژل شوی، بلکې عام خلک وژل کیږي .

په سیاسي ډګرکې یې بې ساري انزوا په برخه شوه، بلکې که ووایو له طالب سره په دې میدان کې هم له مقابلې ووتل، تردې چې دوی ته ترټولو نږدې خلک اوهغوی چې یو وخت ددې ادارې کلیدي شخصیتونه ګڼل کېدل نن له دوی سره په مقابله دي اودطالب له مدعا ننګه کوي .

په رښتيا چې له آزاره چا بـازار مونډلی نه دی

هغه مور چې پـه مـخ کـې يـې خاوند او درې زامن (محصلين) وژل کيږي او دا ورته وايي چې دا يو خـو راته پرېږدئ، هغه بزگر چې هيڅ پـه هيڅه يې مېـرمن اوپنځـه ماشـومان ترخـاورو لانـدې کيـږي، هغـه زوی چې په توره شپه کې تـرې بـوډا پـلار اخيستل کيږي ° آزار نه لري ؟؟!

هغـه دمـلي اردو عسـکر چـې دهمدې نظام په دفاع کـې لـه خپلـه کوره لرې، پـه وظيفـه کـې خـدمت! کـوي، پــه کــور يــې همدغــه ډول وحشت ترسره کيږي له خپل ټول کوره محروميږي، دشـپې پـه تيـاره کـې يـې مېـرمن، زامن، لونې او دکورنی ټول غړي په شپنيو عملياتو کې په کورکې دننه وژل کيږي ...

په داسې حال کې چې دا يو کور نه بلکې هره شپه په هره سيمه کې يـې سـلگونو کورونو ته شمېر رسيږي!

دپنځه کلنې چوکی په مينه کې مست دا سربداله انسان نور له انسانيته وتلی او دهغه " گاو" په څېر دی چې له عقله لرې په هره خوا سر اچوي او هيڅ نه پېـژني، بې دفاع مظلوم هيوادوال يې دهيواد په هره برخه کې په وېره او هراس کې اچولي هيڅـوک دارام ساه نه شي اخيستی هرکور هره شپه په دې انتظار وي چې نن به د وير غدی دچا په کور وي او څه به کيږي ؟

" له آزاره چا بازارمونډلی نه دی" ډېر ژر به پخپله دحکومت په ليکو کې داسې بااحساسه څوک پيداشي چې نور دظلمونو او وحشتونو تحمل ونه لري او انجـام دې د تېر " ...گاو" په څېر کړي .

نرشه له طالب سره وجنگېږه! ډگر ترې وگټه سيمه دې ترې ونيسه او سـيمه دې ترې وساته! په مظلوم بې دفاع او غريب ولس طالب ته زور مه ورښيه !!

# يتيمان مه ژړوئ!

#رسول_اللهﷺوفرمايل:

-کله چې يتيم په ژړا شي، د الله ﷻ عرش په ښورېدو شي!

الله ﷻ ملائيکو ته وفرمايي:

-دا يتيم چې، پلار يې تر خاورو لاندې دی، چا وژړوه؟

ملائيکې ووايي:

يا الله ﷻ تاسې ښه پوهېږئ.

نو الله ﷻ بيا وفرمايي:

-ای ملائيکو! تاسې گواه اوسېږئ، څوک چې ددې يتيم ژړا خاموشه کړي او څوک يې زړه خوشحاله کړي، زه به د قيامت پر ورځ هغه کس خوشحاله کړم.

(مجمع البيان جلد: ۱۰، صفحه: ۵۰۶)

# دشهید الحاج مولوي عبدالمنان رحیمي

## ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

لیکنه: نوراني عزام

د افغانستان اسلامي امارت د هغو مخلصو علماء کرامو، طالبانو او صالحانو د هڅو او قربانیو محصول دی، چې د اسلامي نظام د قیام لپاره یې خپل سر او مال وقف کړي او په دې لاره کې له هیڅ راز قرباني او ایثار څخه ځان نه سپموي. دغه د الله تعالی مخلص بندګان یوازې له الله تعالی سره معامله لري. نه د شهرت، منصب او نوم نشان شوق ورسره وي او نه هم مادي ارمانونه لري. بلکې خپل خدمت په ډېر اخلاص یوازې د الله تعالی د رضاء لپاره سرته رسوي، تر دې چې د وفات یا شهادت نیټه یې راورسیږي او د جهادي خدمت له سنګره د الله تعالی لقاء ته ورشي.

د داسې مخلصو او فداکارو مشرانو له جملې یو شهید مولوي عبدالمنان رحیمي صاحب و چې کلونه کلونه یې د جهاد او اسلامي نظام د قیام په لاره کې نه ستړي کیدونکې هڅې وکړې، ډېر تکلیفونه یې ولیدل تر دې چې بالاخره په همدې مسیر کې داسې وخت په شهادت فائز شو چې په نیمه شپه دتهجد لمانځه ته پورته شوی او د دښمن د ډرون برید هدف وګرځید. په دې لیکنه کې د دې مخلص او فداکار شهید په ژوند او کارنامو لنډه خبره کوو هیله ده چې د توجه وړ مو وګرځي.

### زوکړه یې

اروابښادشهیدالحاج مولوي عبدالمنان (رحیمي) دګلریز اکا زوي، په ۱۳۳۴هجري لمریز کال دثور۲۷ نیټه دچهارشنبې په ورځ دافغانستان دهرات ولایت دګلران ولسوالۍ دشور رود په کلي کې په یوه متدینه کورنۍ کې وزیږېد.

شهید الحاج مولوي عبدالمنان چې د طالبانو داسلامي تحریک له لومړیواشخاصوڅخه ګڼل کیږي د روس د سرولښکرو همداراز دانارشیزم په وړاندي یې کلکه مبارزه وکړه اوتل یې دحق دلاري د یو نه ستړي کیدونکي قائدمجاهدپه توګه خپله جهادي وظیفه اجرا کړه.

### زدکړه یې:

داچي شهید الحاج مولوي عبدالمنان (رحیمي) صاحب باندي الله تعالی (جل جلاله) ښه استعداد اولیاقت لورولی و،نو والدصاحب یې د ده استعداد ته په کتو د دیني زدکړو لپاره غوره کړ او د زدکړو لپاره یې په دوه کاله اوپنځه میاشتو عمر کي د هرات ګلران ولسوالی مشهورعالم مولوي محی الدین صاحب ته د دینې تعلیم لپاره وسپاره، چي ابتدائي ټولي زدکړي یې له مولوي محی الدین صاحب سره سرته ورسولي. نهه (۹) کلن وو چي د نورو زدکړو لپاره هلمند ته لاړ اوهلته یې د هلمند ولایت مرکز لښکر ګاه ته څیرمه د بشران په سیمه کي د کاکړانو په مسجد کي متوسطي ټولي زدکړي سرته ورسولي او د پاتي زدکړو او دستاربندی لپاره یې د ګاونډي هیواد پاکستان د بلوچستان ایالت د کویټي ښار ته سفروکړ او هلته یې پاتي زدکړي او دستاربندي د کویټي ښارپه چالوباوړی سیمه کي د حاجي میاخان په مسجدکي په شهید شیخ مولوي رحمت الله صاحب باندي پای ته ورسولي.

**مسؤلیتونه یې**

کله چې په ګران هیواد افغانستان باندي روسانو یرغل راوړ او په وړاندي یې افغان مجاهد ولس په مسلح جهاد پیل وکړ، شهید حاجي مولوي صاحب د قندهارپه ژړی او پنجوایی ولسوالیوکي د قومندان حاجي ملا محمد صادق او د اسلامي امارت د نائب شهید ملاعبیدالله اخند سره یوځای شو او دلته یې په جهادي چارو پیل وکړ. کله چې جهادي مقاومت نور پیاوړی شو او واړه ګروپونه په سترو محاذونو بدل شول شهید حاجي مولوي صاحب د مولوي مخلص صاحب سره ملګری شو او د هغه تر مشرۍ لاندي یې په هرات ولایت کي د طلاب انصاري په نامه د مجاهدینو یوهستره جبهه پرانیستله چې په یاده جبهه کي شهید حاجي مولوي صاحب د عمو مي قمندان په توګه وټاکل شو.

کله چې د شوروي اشغال پای ته ورسیدی او د اسلامي امارت د مجاهدینو لخوا د شر او فسادپه وړاندي جهاد پیل شو، شهید حاجي مولوي صاحب د امیرالمؤمنین ملامحمد عمرمجاهد د څو تنه هغه ملګرو څخه ووچي د ده سره یوځای یې په کندهارکي د شر او فسادپه وړاندي په لومړني قیام کي برخه اخیستي وه، او له قندهارڅخه تر هراته د تحریک د طالبانوسره ملګری وو، کله چې طالبان هرات ته ورسیدل او هرات ولایت فتحه شو، د هرات د پنځمي سرحدي لیوا مرستیال وټاکل شواو بیا چې طالبان بادغیس ته ورسیدل شهید حاجي مولوي صاحب د هرات دشنډنډ ولسوال وټاکل شو، په شنډنډ کي شپږ میاشتي ولسوال پاتي شو.

په شینډنډ کي له شپږ میاشتي مسؤلیت وروسته د بادغیس والي وټاکل شو په بادغیس کي د دوه کاله او پنځه میاشتي مسؤلیت وروسته د سرپل د والي په توګه وټاکل شو، یو کال د سرپل د والي په توګه پاتي شو، له سرپل څخه وروسته د سمنګان والي وټاکل شو، له سمنګان ورو سته د دوهم ځل لپاره د سرپل والي وټاکل شو، پنځه میاشتي یې بیا دلته سرپل کي تیري کړي له دي وروسته د امریکایي یرغل له امله اسلامي امارت له ښاري سیمو شاتګ وکړ.

کله چې امریکایي اشغالګرو او همکارانو یې پر افغانستان یرغل راوړ او په مقابل کې یې د اسلامي امارت جهادي فعالیتونه پیل شول، شهید حاجي مولوي صاحب د اسلامي امارت په لیکوکي د یو مخلص او ایثارګر مجاهد په توګه خپله جهادي مبارزه یو ځل بیا پیل کړه، د امریکایي اشغال په وړاندي داسلامي امارت په تشکیلاتوکي شهیدحاجي مولوي صاحب لومړی مسؤلیت دهرات ولایت دوالي په توګه ټاکل کیدل وو، دوه کاله او پنځه میاشتي حاجي مولوي صاحب دهرات دوالي په توګه دنده سرته ورسول.

په هرات کي له دوه کاله ولایت وروسته د اسلامي امارت په شل کسیزه مرکزي کمیسیون کي د کمیسیون د غړي په توګه وټاکل شو، له دوه کاله دې مسؤلیت ورسته پنځه کاله د شمال لویدیځ زون د نظامي کمېسیون د حلقي عمومي مسؤل وو، د دي مسؤلیت ورسته د شهید امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور(رحمه الله) په وخت کي په هیوادکي د هزاره قوم د مشکلاتو د حل لپاره د یوه ځانګړي کمیسیون مسؤل وټاکل شو.

یوکال د دي کمیسیون مسؤل پاتي شو د دي کمیسیون له مسؤلیت ورسته دري کاله د جنوب لویدیځ د پنځه لس ولایتونود ملکي تلفاتو اوسمع شکایاتو دکمیسیون مسؤل پاتي شوچي بلاخره د همدي کمیسیون دخدمت په جریان کي شهیدشو.

**ځینې خاطرې یې**

دشهید حاجي مولوي صاحب ملګري وایې چې نوموړی له پیله مخلص متدین متعهد او په جهادي چاروکي برلاسی و، په اسلحوکي د هاوان او راکټ مسلکي وو او په جګړو کي به یې له راکټ لنچرڅخه کار اخیسته، جګړه که به څومره هم سخته وه شهید حاجي مولوي صاحب به د هیڅ بیري او ډار احساس نه کاوه هغوی وایي کله چې به شهید حاجي مولوي

صـاحب راسره ملگـرى و، مـوږ بـه ډېـر مطمـئن وو داسي مـو انګيرله چـي ګـواګي هـيڅ خطرنشـته. دده نيـژدي ملګـرى مـلا اسماعيل وايي چي زما ټول عمر نه يادېږي چي شـهيد حـاجي مولـوي صـاحب دي پـه سفر اوکـورکي د تهجـد لمـونځ نـه وي کړى، ملا اسماعيل زياتوي شهيدحاجي مولوي صاحب به تـول وخت مجاهدينو ته د ولس سره د نيکي کولو سپارښتنه کـول او تل به يې هڅه کول چي د مجاهدينو اتفاق او اتحاد وساتي.

د شهيدحاجي مولوي صاحب ملګرى ملا نورالـدين آخنـد وايي ماهيڅ کله شهيد حاجي مولوي صاحب ندى ليدلى چـى په سنګر کى د وارخطايي او ډېـر علائـم پـرې ليـدل شـوي وي، اللـه تعـالى عجيـب توکـل او اطمينـان ورکـړى و ، هغـه بـه پـه هروخت په تعرض کـى مجاهيـدينو سره يوځـاى وو اومجاهـدين به د ده د وجود له امله ډېـر ډاډه وه او د تعـرض پـه حالـت کـى داسي نورمال ښکاريده لکه چې د ملګـرو سره د يـو خوشـحالى په مجلس کي مصروف وى.

په۱۳۶۹هـ ش کال کې دګلران د چاه شرين په کلي کې د روسي اجيرانـو ۹۴۰ کنـډک چـې د پنځمـې سرحـدى لـوا مربوط وو د شهيدحاجي مولـوي صـاحب د نظـامي تاکتيـک او مهارت په ذريعه د يوتعداد مجاهـدينو لخـوا تـر سختې جګـړې وروسـته فتحـه شـواو پکـې ميشـتې تـولي اجيـري مليشـې يـې شهيد تسليم شوې اوپـه زياتـه انـدازه سـلاح او مهـمات ورڅخـه غنيمت ولجه شول.

**د زندان خاطره**

په افغانستان د امريکايـانو د يرغـل او سـلطې پـه لومړنيـو کلونـو کـې شـهيد مولـوي عبـدالمنان صـاحب او د ده ځينـې ملګري په هـرات کـې د امريکـا ګوډاګيـانو ونيـول او څـه مهـال بنديان و چې ځينې ملګري خو يې بيا ګوانتانامو زندان تـه هـم واستول شول، خو دا چې مولوي عبدالمنان صاحب پـه هـرات کې ښه وخـت تېـر کـړى و او د اولـس پـه زړونـو کـې يـې ځـاى درلود نو د هرات عـام اولـس د هـرات د هغـه وخـت پـه واکمـن تورن اسمعيل خان باندې فشار واچاوه چې په نتيجـه کـې يـې مولوي صاحب له زندان څخه ازاد شو.

د مولوي صاحب يو ملګرى محب الله اخنـدزاده صـاحب چـې پـه همـدې وخـت کـې يـې لـه شـهيد مولـوي عبـدالمنان صاحب سره په محبس کې وخت تيرى کړى، له نومـوړي څخـه د امريکايـانو د تحقيـق خـاطره بيـانوي نومـوړى داسـې کيسـه کوي.

امريکايانو څلـور ځلـه لـه مولـوي صـاحب څخـه پـه خپلـه تحقيقات وکړل او مختلفې پوښتنې يې تـرې وکـړې چـې دلتـه يې يو مثال وړاندې کوم

امريکـايي محقـق: د طالبـانو نظـام او د مـلا محمـد عمـر کردار او تګلاره غندې او کنه؟

مولوي عبدالمنان: د طالبانو نظـام ځکـه نـه شـم غنـدلى چې هغه د اسلام په اساساتو ولاړ نظام و، طالبانو له ډېرو کلونو وروسـته يـو وار بيـا د اسـلام احکـام راژونـدي کـړل، حـدود يـې جاري کړل او شريعت يې نافذ کړ، زه د طالبانو نظـام غنـدم نـه بلکې تائيدوم يې.

ــ تاسو ولې د خپلې واکمنۍ په وخت ښځو ته حقـوق نـه ورکول؟

ــ دا چې موږ مسلمانان يو، په اسلامي شريعت عقيـده او باور لرو، نو ښځو ته هم هغه څـه پـه خيـر بولـو چـې اسـلام يـې لارښـوونه کـوي، مـوږ ښـځو تـه اسـلامي حقـوق ورکـړي دي او اسلامي حقوق د ښځو د دنيا او آخرت د سعادت سبب بولو.

ــ اوس چـې افغانسـتان ټـول مـوږ نيـولى دى او طالبـان مکمل ختم شوي دي، ستا فکر څـه دى چـې مـلا محمـد عمـر مجاهد به په څه بوخت وي؟

ــ زما پـه نظـر اميرالمـؤمنين مـلا صـاحب بـه کـرار نـه وي ناست بلکې ستاسو په مقابل کې به د جنګ تيارى کوي.

ــ ته څه فکر کوې چې اوس له بندي کيدلووروسته بـه لـه تا سره څرنګه چلند وشي؟

– کله چې زه واکمن و او دلته په هرات کې د تنظیمه ریاست مرستیال وم او یا په نورو ولایاتو کې والي وم، نو ما د الله تعالی له بندګانو او رعیت سره ښه ګذاره کړې ده. په دوی مې ظلم نه دی کړی او د دوی په حق کې له الله تعالی څخه ویریدم. اوس مې باور دی چې الله تعالی به د هماغه عمل په برکت په ما باندې رحم کوي، ما ته به ان شاءالله هیڅوک تکلیف ونه رسوي ځکه ما چا ته تکلیف نه دی رسولی.

## شهادت یې

دشهید مولوي عبدالمنان رحیمي صاحب نیږدې ملګری او زوم چې د ده سره په وروستي جهادي سفر کې ملګری هم وو وایي مولوي صاحب د سمع شکایاتو او ملکي تلفاتو د کمیسیون د کارونو په سلسله کې په جهادي سفر وتلی و او د غزني، میدان وردګ او نورو شاوخوا ولایاتو څخه یې لیدنه کوله. د سفر په جریان کې یوه ورځ مازدیګر مهال د غزني ولایت د آب بند ولسوالۍ د خلیج بازارته شیرمه د آخند خیلو په کلي کې یې مجاهدینو او عامو خلګو ته د مازدیګر د لمانځه وروسته لنډ اصلاحي بیان او نصیحت وکړ، چې له دې ځایه یې حرکت وکړ د ماښام لمانځه ته لږ وخت پاتي ووچې په موټر یې د امریکایي بې پیلوټه الوتکې لخوا د توغندي برید وشو، په دې برید کې د نوموړي چپه سترګه او نور بدن زخمي شو خو زخمونه یې خطرناک نه وو ، له همدې ځایه مولوي صاحب یو بل کلي ته لاړ هلته د شپې تیرولو اراده وکړه، خو داسې معلومیده لکه د دښمن چې تر څار لاندې و، شهید مولوي صاحب عادت درلود چې په هیڅ حالت کې یې د تهجد لمونځ نه پرېښود، حتی په همدې شپه له ټول خطر سره سره چې بدن یې هم زخمي و د شپې په څلور بجې را پورته شوی و چې په باغ کې اودس وکړي او د تهجد لمونځ اداء کړي، په همدې وخت کې نوموړی تهجدته په تیاري لګیا و او اودس یې کاوه د دښمن بې پیلوټه الوتکې یو ځل بیا ورباندې برید وکړ او دغه د الله تعالی د لارې مخلص مجاهد یې په شهادت ورساوه.

انا لله وانا الیه راجعون

# استشهاد، سربښندنه او ځان ځارول

لیکنه: محمد عمر "منیب"

هغه عنوان چې په هر توري یې کتابونه لیکل کېدلی شي، هغه ښایست چې سترګې یې د ښکلاوو تاب نلري، او هغه مینه چې ویل کیږي نه! بلکې عملي کیږي.
له خپل سیوري څخه په وېروونکې تیاره کې، د الله عزوجل د کلام په بدرګه، په اوښکو پوښل شوی د مینې راز او نیاز یې پیل...
د آسمانځکو غرونو په څوکو او لمنو کې د تکبیرونو زمزمې، د دنیا کې له رنګینیو او مادي ښایست لا پروايي، او د معاصر نمرود په وړاندې خلیلي قیام یې پالنه...
او د سي فورو په لوکیو کې د نازک بدن ورکېدل، د تنکیو غوښو په لوګیو امت ته د رحمت وربځ راوستل، او د ټوک ټوک قافلو په پلونو باندې د مزل وروستی پړاو یې عملي ثبوت دی.
استشهاد کومه پټه معما نده چې حل کېدلی نشي؛ هاغه د عمیر ابن الحمام د خبرې عملي ثبوت دی چې: لئن حییت حتی آکل تمراتي هذه انها لحیاة طویلة. که زه دومره ژوندی پاتې شم چې خپلې دا خرماوې وخورم دا خو ډېر اوږد ژوند دی.
استشهاد له جنون او تجذب څخه ډېره فاصله لري، خو د فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ هغه مقوله ده چې د مادیت ټوله نړۍ ورته ګوته په غاښ ده.
کله چې د محبوب څنګ ته ځان رسول په سکروټو باندې مزل غواړي؛ تماکو شویو پښو ته ګل د مینې له ګابه لرې پاتې والی دی. د هېښوونکي اور لمن ته ځان وړاندې کول، د آزر خیاله ذهنونو له تصوره لوړ وي؛ ځکه ورته ابراهیمي یون لېونتوب ښکاري.
عجیبه نده؟! چې یوائې د قلم په څرخولو د استشهاد د تعریف هڅه کوم، سره له دې چې دا یو نا ممکنه اقدام دی، زما په اند: ما به هغه ورځ د استشهاد تعریف پوره کړی وي چې د موټر بم له بارودو مې د بدن دومره برخه پاتې نه وي چې کفن پرې ککړ شي.

و ما ذلک علی الله بعزیز

# ګلخونه

## غزل

شاعر: ثاقب خپلواک

د غزا غزاله درومي بیا د مینې تر درشله
حماسه د اریانا یې فلسفه د عشق ګنله

د بدلون ایات یې لیک و،د مرموز حسن پر پاڼه
د بریا حرا ته وحې یې غازي جبریل راوړله

واړه غرونه سندریز وو، داؤدي ترنم خپور و
چې شرنګا د شنو بنګړو یې ربابي نغمه غندله

په لمانځه کې د جهاد یې برندې سترګې لکه وینې
شوه جومات د انقلاب کې د پاځون مسته غزله
فدایي یو څو وګړي یې باڼه وو درګې درګې
له نیازبینو سترګو تاو یې څومره ښکلې حلقه وله

د بري په تور اوربل یې څاڅکی سره ګلان ټومبلي
بیا د وینو وریښمن پوښ کې په لار ړنګ بنګه تلله
په کعبه څېره یې خپور حجاب د څوشهیدو زلفو
د سینې په حرم پروت یې لونګین سجده کوله

د ښکلا سرخي یې ښکاري په غازي کشمیري شونډو
د هندي سلګو بدرنګه قافله ترې کوچېدله

په لمن د ازادۍ یې وو، کتار غمي ګنډلي
څو زلمو ته یې د پیغلې ملالۍ ټپه ویله

ژوند یې څنډ واهه له څڼو مرګ د تاندو غشو ژړو
چې چانټه د خراسان به پرې له ورایه ځلېدله

چې د خیال د قلم اوښکه د ثاقب شوه مرغله
په ګرېوان یې د غزلې روڼ امېل ته غړېدله

## غزل

هاشم سادات

له ژوند به کړه وړو مو د غیرت په دروازه
ورځو به له د نیا د شهادت په دروازه

ډاډ من اوسئ ملګرو ډېره لاره مو وهلې
ولاړ یو اوس د خپل رب د نصرت په دروازه

جانانه مجاهده ستا د حسن ننداري کړي
ولاړې پیغلې حورې د جنت په دروازه

چا پې دي انقلاب دی کور کې شپه تېرول ګران دي
کوو اوس دیوبل مونږه زیارت په دروازه

مورجانې درنه ځمه د تور سرې خیال مې ساته
سپارمه در ته خپل دا امانت په دروازه

بڼو لاندې یې را اوکتل په اوښکو اوښکو سترګو
مونږ یو بل نه چې واخستو رخصت په دروازه

نو څه کول پکار دي درباري مفتي صاحبه
تار تار چې د وطن مو دی عزت په دروازه

هاشمه! د ازمیښت په دغه ګرانو ګرانو لارو
خدای خو دې ور تیر کړه سلامت په دروازه

خولې ورته له سره د ځوانانو را غور زیګې
بیرغ د امارت مو دمره بر نیولې دي

طالبه! ستا کردار او حوصلې ته فکر یوړم
د هر مظلوم په مخ کیدې ځان سپر نیولې دی

## فدايي جانان

ابو احسان عامر

لـه گـل سره پـه حسـن کـې سـيالي کـوي جانـان
روان دی پـه خنـدا ځـي فـدايي کـوي جانـان

د خـدای د مينـې زور دی د لمبـو غيـرې تـه خانـدې
خليـل د زمـانې دی قربـاني کـوي جانـان

نـور ځـي اخـلي رخصـت د معسـکر جنتـي غيـر نـه
وروسـتی ديـدن دی نـور خـدای پامـاني کـوي جانـان

حيـران مشـک گلابونـه يـې د وينـو نزرانـې تـه
د تـرې جهـادي بـڼ ابـادي کـوي جانـان

## انتقام او بدله

دطـالب اودکِتـاب بدلـه بـه اخلـم
دمسـجداودمحراب بدلـه بـه اخلـم

تـاچې درې ورې خـره مدرسـه کـړه
دشاگـرد اودجِنـاب بدلـه بـه اخلـم

پـاڼې پـاڼې دې کـړل ټولـه کِتـابـونه
دکتـاب دهرېوبـاب بدلـه بـه اخلـم

گلابونـه دې پـه وينـوباندې رنـگ کـړل
دنـرگس ريحـان گـلاب بدلـه بـه اخلـم

چـې زاړه واړه دې ټولـه شـهيدان کـړل
دماشـوم پـېغلې شِـباب بدلـه بـه اخلـم

تـه چـې سـپين سـهارافتاب پـه کـاڼوولې
دسهـارماښـام افتـاب بدلـه بـه اخلـم

عِـکرمه جَـانان بـه نکـړمه غفلتـه
ددې خـړپـړ اِنقـلاب بدلـه بـه اخلـم

## د آزادۍ خوب

ملاله يې ميوند کې په ټپه ليدلې ده
جناب په خوب کې سپينه لنگوټه ليدلې ده

يو سپين سهار ختلی وي د تور ماښام په ټنده
ټوليږي له هر لوري نه تيارې درومي په منده
د نوي تحول يې پيلامه ليدلې ده

تورزن زلمي پر سر د اشغالگرو کوي واري
رابندي پر فردو وي د وتلو ټولې لاري
د سپيني ماڼۍ پاس يې کليمه ليدلې ده

اذان د ميني خيزي د اقصی له منارونو
مست شور د تکبير خور وي د هيواد پر سنگرونو
په سپين قران يې سپينه فيصله ليدلې ده

مشهوده ازادي وي اسلامي نظام قائم وي
ويښ سوی په صدا د حق له خوبه هر نائم وي
پر سر يې د پامير هسکه شمله ليدلې ده

# د "وایسرای"

## له اصل کیسې نه که خبر نه یاست، نو لاندې مطلب ولولئ.

تنویرم

حمد الله محب پر خلیلزاد باندي تور لګوي چي غواړي د افغانستان حکومت کمزوری کړي، یا یې بېخي بدل کړي، او یا ښایي غواړي چي خپله د جمهورریاست لپاره کاندید سي. محب وایي،«دا چي خلیلزاد د افغان حکومت غیر مشروع او کمزوری کوي، او په عین زمان کي طالبان غښتوي، دا فقط یو هدف لري، او هغه دا چي د خلیلزاد دا اقدامات قطعا د سولي لپاره نه دي. هغه سوله او مصالحه نه راولي، بلکي بېګانګي او فاصلې ایجادوي «.

د ډیلي بیسټ د مارچ پر ۱۴ لیکي حمد الله محب وایي چي هغه واشنګټن ته دقیقا پدې هدف راغلی دی چي غواړي امریکایي مقاماتو ته شکایت وکړي چي خلیلزاد د دې پر ځای چي طالبان دېته وهڅوي چي د کابل حکومت سره خبرو ته کښېني، خلیلزاد د کابل حکومت بای پاس کړی دی. او طالبانو ته یې هیڅ داسي دلیل نه دی وړاندي کړی چي باید د افغان حکومت سره خبرو ته کښېني، حال دا چي «طالبان د پسرلي عملیاتو ته پوره چمتوالی نیسي «.

محب علاوه کوي،«حتی که چیري هلته یوه معامله هم وسي، دا به یوه بده معامله وي» ځکه دا به حکومت لا کمزوری کړي. هغه وایي همدااوس طالبان په جار جار وایي چي د جهان د ملکونو خارجه وزیران د ملاقات لپاره په لین ورته ولاړ دي، ځکه هغوی پوهېږي چي طالبان به راتلونکي حاکمان وي .

محب وایي که څه هم خلیلزاد شپاړلس ورځې د طالبانو سره په قطر کي په خبرو تېري کړي، خو د کابل سره یې هیڅ معلومات شریک نه کړل، بلکي یوازي یې په ټویټ باندي خبر ورکړ .

محب وایي چي د معلومات په نشتون کي د کابل په حکومت کي دا تیوري زور اخیستی دی چي خلیلزاد عمدا د کابل حکومت کمزوری کوي، او غواړي چي خپل پخوانی ملګری، حامد کرزی، بېرته قدرت ته ورسوي. محب زیاته کړه،«موږ فکر کوو چي یا خلیلزاد نه پوهېږي چي څه کوي، او یا د بل څه د کولو خیال او فکر لري«.

محب وایي د کابل حکومت فکر کوي چي د موقتي حکومت د جوړولو خبري دا ښیي چي ښایي خلیلزاد غواړي چي د همدې موقتي حکومت «ویسرای» سي .

محب وایي هغه واشنګټن ته پدې نیت راغلی دی چي امریکایي مقاماتو ته شکایت وکړي، خو امریکایي مقاماتو تر اوسه پوري د هغه شکایت ته غوږ نه دی نیولی، او نه هم دا کوښښ کړی دی چي د کابل حکومت د سولي په خبرو کي ور ګډ کړي. محب وایي د امریکا د ملي امنیت مشاور ښاغلي بولټن هم بد او سپک چلن ورسره کړی دی،ځکه محب ته ویلي دي چي ملاقات لپاره وخت نه لري .

محب وایي د امریکا حکومت پدې وروستیو کي د افغان حکومت سره ډېر توهین آمېزه چلن کوي. ځکه خلیلزاد د کابل حکومت ته دیکته کوئ چي د طالبانو سره خبرو په هیات کي باید څوک شامل کړای سي .

ډیلي بیټ لیکي سپیني ماڼۍ او خارجه وزارت پدې برخه کي د تبصرې کولو څخه ډډه وکړه .

# په کانګرس کې د افغان له جنګ سره مخالفت زیات شوی

(ګرداب)

څو ورځې کېږي چې د متحده ایالاتو مشهور سناتوران او د کـانګرس غـړي د افغانسـتان د کشـالې د ختمولـو لپـاره جـدي اقـداماتو تــه لاس اچـولی دی. تېـره ورځ، د امریکـا د سـنا دوو مقتدرو غړو سناتور رانډ پال او سناتور ټام یوډال یوه داسي لایحه معرفي کړه چې وايي په افغانستان کي دي د امریکا نظامي حضور د دې کـال تـر پایـه ختـم سي. دا لایحـه جمهـورریس ټرمـپ ۴۵ ورځي وخت ورکوي چي کانګرس ته خپله طرحه وړاندي کړي.

سناتور پال په خپله وینا کي وویل چـي د افغانستان جنـګ نور د امریکا د ملي امنیت په ګټه نـه دی، او بایـد ختـم سي. هغـه زیاته کړه چي امریکا باید د ملت - دولـت د جوړولـو لـه کاروبـار څخه ځان راوباسي. هغه وویل موږ خپل ماموریت بشپړ کړ، مـوږ باید خپلو کورونو ته راستانه سو.

دغـه راز، د متحـده ایـالاتو مشـهور سـناتور بـرني سـنډرز، سناتور الیزابت وارن، د ګانګرس غړې الګزاندریا، مېـرمن عمـر، او پنځو نورو د کانګرس غړو هغـه ژمنـه امضـا کـړه چـي د امریکـا د ابدي جنګونو ختمـول غـواړي. دا ژمنـه د (کـامن ډیفـنس) لخـوا ترتیب سوې ده، دا سازمان یو نیم لک غړي لري.

د امریکا د جمهوري ریاسـت د انتخابـاتو مخکښ کاندیـد سناتور سنډرز په خپل ټویټ کي لیکي ول: اته لس کـالېږي چـي موږ په افغانستان او عراق کي جنګېږو. موږ بایـد دا جنګونـه ختـم کړو،او د جنګ د مصارفو پیسې دلته په امریکا کـي پـر معـارفو او زیر بنایي کارونو باندي ولګوو.

د نیویارک ځوانه دیموکراته سوسیالست استازي الګزانـدریا وايي د افغانستان اشغال یوه «فاجعه» ده. هغې پر کـانګرس بانـدي ږغ کړی دی چي د افغان د جنګ اجازه دي لغوه کړي.

په عین زمان کي، د امریکا خارجه وزیر ښاغلي پامپیو ویلي دي چي ښایي په څـو هفتـو کـي قطـر تـه ولاړ سي، څـو د خبـرو جریان لا ګړندی کړی.

اوس نو، د متحده ایالاتو په کانګرس کي د افغان لـه جنـګ سره زیاتېدونکی مخالفت دا ښیي چـي د قطـر خبـري حسـاسي مرحلـې تـه رسـېدلي دي، او ښـایي ډېـر ژر مهمـي فیصـلې تـرې راووزي.

بلـه خبـره دا ده چـي د امریکـا د جمهـوري ریاسـت ټـول دیمـوکرات کاندیـدان د افغـان د جنـګ مخـالف دي، او هـر یـو کوښښ کوي چـي پـه راتلونکـو انتخابـاتو کـي د دې جنـګ سره خپل مخالفت اظهار کړي، او د امریکایانو رایي ترلاسه کړي.

ټرمپ پدې ښه پوهېږي چي که چیري د افغان جنـګ ختـم نه کړي، د هغه دیموکرات حریفـان بـه همـدا مسـله د ده پـر ضـد وکاروي. نو لهذا، ټرمپ پر خلیلـزاد او پـامپیو بانـدي زیـات فشـار واچولی دی چي د قطر خبري ژر تر ژره خلاصي کړي، او مثبـت نتـایج یـې اعـلام کـړي. ځکـه ټرمـپ غـواړي چـي پـه راتلونکـو انتخابـاتو کـي لـه افغانسـتانه د امریکـایي عسـکرو د راایسـتلو کریډیټ د ځان کړي، او امریکایانو ته ووایي چي د امریکـا اوږد جنګ ما ختم کړ.

اوس نو، د افغان سوله پالـه قوتونـو لپـاره څـه پکـار دي؟ پـه تېرو څو ورځو کي یو شمېر افغانانو د قطر د خبـرو پـه ملاتـړ یـوه اعلامیه خپره کړه، او پدې اعلامیه کي یې دواړوي خواوي تشویق کړي وې چي ژر تـر ژره دا جنـګ فیصـله کـړي، او یـوې مثبتـي نیتجې ته سره ورسېږي.

امید دی چي په دننه او بهر کي نـور افغانـان هـم ورتـه شـان اعلامیې خپـرې کـړي. د سـولي لپـاره مـدني ناسـتي او لاریونونـه وکړي، او پدې حساس وخت کي خپل ملي او ایماني وظیفـه تـر سره کړي.

موږ پدې باور یو چي د عمل او د تـاریخ د قضـاوت وخـت رارسېدلی دی. چوپ پاته کېدل نه د افغانستان پـه ګټـه دي، او نـه هم ویښ وجدان او ایمان دا حکم کوي.

# عمر سیاسی یک حاکم مزدور چطور به پایان می رسد؟!

سیف الله م

رئیس‌جمهور اداره کابل بعد از اکمال دور چهارم گفتگوی صلح با طالبان در خطاب به ملت گفت: "ما بخاطری به تدبیر تأکید می کنیم که از تجربه زمان داکتر نجیب الله آگاهی داریم، ما همه می دانیم که او چگونه فریب داده شد، سازمان ملل متحد به وی تضمین تامین صلح داده بود؛ اما متاسفانه به فاجعه انجامید." وی چند روز بعد در سخنرانی دیگرش خطاب به سربازان گفت: "رئیس‌جمهور شما نه شاه شجاع است و نه هم امیر یعقوب خان که برای کسی سر بگذارد و یا معاهده گندمک را بالایش امضا کنند." وی افزود که مارگزیده از ریسمان می‌ترسد، مگر ما نه از مار می‌ترسیم و نه هم از ریسمان، زیرا ما عقل داریم و با تدبیر به پیش می‌رویم و آنچه را انجام می‌دهیم که عزت کشور در آن مصئون باشد.

تاریخ معاصر بشر برای همگی ثابت می‌سازد که عزت مزدور با وقار نسبت به مزدور حلقه به‌گوش نزد بادار به مراتب بیشتر می‌باشد. اما اشرف غنی از آنعده مزدورانی به شمار می‌رود که مزدوران حلقه به‌گوش را نیز شرمانده است.

اینکه چرا؟! جزئیات بسیار زیاد دارد که در اینجا به گوشه ی از خوش خدمتی هایی اشاره میکنم که اشرف غنی در طول زمامداری اش به امریکایی ها انجام داده است ولی امریکایی ها وی را نادیده گرفته و موقف وی را در پروسه های بزرگ مانند انگشت ششم دست قرار داده اند: منزوی و بی صلاحیت:

اشرف غنی در ۲۴ ساعت نخست ریاست جمهوری اش پیمان امنیتی با امریکا را امضا نمود و گفت که امروز روزی است که افغانستان حاکمیت ملی خود را به صورت اساسی به دست می‌آورد. حالانکه این پیمان ننگین ترین پیمان در تاریخ معاصر افغانستان شمرده می شود که روی معاهدات گندمگ و دیورند را سفید ساخته است.

·اشرف غنی برای تمویل جنگ امریکا در افغانستان سیستم مالیاتی دولت را طوری عیار نمود، تا افغانستان را با شرایط صندوق بین المللی پول، بانک جهانی و سایر نهادهای استعماری بین المللی وفق دهد. وی عواید دولت را در اثر وضع نمودن مالیات گزاف بر تاجران، کسبه کاران، صنعتگران، دهقانان و حتی مردم عام و بی بضاعت، از سقف تعیین شده صندوق بین المللی پول نیز بالاتر برد. درحالیکه سطح بیکاری بالاتر از ۵۰ درصد گزارش شده است.

اشرف غنی تحت نام جوان سازی ادارات دولتی و مبارزه با فساد؛ پالیسی) تغییر نسل یا (Generation Change را در تمام ادارات دولتی اعمال نمود و بقایای مجاهدین و کمونیستان اسبق را ریشه کن ساخت، و در عوض مهره های سیکولار را جایگزین ساخت .

·اشرف غنی بعد از عقد پیمان امنیتی با امریکا جنگ را افغانی ساخت و علاوه بر صدها هزار تلفات ملکی ٤٥ هزار نیروی نظامی افغان را نیز به تیغ کشتن داد. همزمان با این صدها هزار خانوادهٔ دیگر نسبت به مشکلات امنیتی و وضعیت بد اقتصادی اقدام به مهاجرت نمودند. وی خون افغان ها را تخته خیز نفوذ امریکا در اوراسیا قرار داد، که زمامداران اسبق نیز دست به چنین جنایتی نزده بودند

·اشرف غنی تحت نام برنامه های اقتصادی و راه اندازی دهلیزهای هوائی وغیره طرح های اقتصادی اش، زمینه را برای افتتاح و راه اندازی پروژه های منطقوی هموار ساخت. که درحقیقت هموارسازی تسلط امریکائی بر کشور وحتی کشورهای منطقوی می باشد. زیرا پروژه ها وطرح های منطقوی زمینه تأمین وگسترش نفوذ امریکائی را در منطقه ساده می سازد. ولی سهم افغانستان یک مقدار بسیار کوچک وغیر قابل ملاحظه درین میان می باشد. همچنان، اشرف غنی چهارراه اقتصادی را به یک چهارراه

امریکائی مبدل ساخت. وی زمینه استخراج معادن وانتقال آن را توسط امریکائی بیشتر ازقبل مهیا ساخت.

·با وجود خوش خدمتی زیاد اشرف غنی به امریکا، وی بعد از چند بار تقاضای ملاقات با ترامپ، جواب منفی دریافت نمود که بالاخره درین اواخر با کمال بی شرمی به وی نامۀ محرمانه فرستاد، که حتی آن هم از جانب بادارش محرمانه نماند و از سوی رسانه‌های امریکایی افشا شد. وی درین نامه از ترامپ خواسته بود که نیروهای آمریکایی را به طور کامل از افغانستان خارج نکند. با در نظرداشت شخصیت تجارتی ترامپ حتی پیشنهاد نموده بود که هزینه‌های نیروهای آمریکایی در افغانستان می تواند تا ۲ میلیارد دلار و تعداد نیروهای آمریکایی تا ۳۰۰۰ نفر، کاهش یابد.

نهایتا این که اشرف غنی درطول چهار سال حکمروائی خود بیشتر از چهار کلمه ی کلیشه یی دیگر چیزی برای مردم افغانستان فراهم نکرد و تحت نام اصلاحات اقتصاد را به رکود برده، جوهای خون را جاری ساخت و حالا بعد از ذلت و رانده شدن از سوی بادار، اکت های قهرمانی در می آورد.

با در نظرداشت موارد فوق اشرف غنی راست می‌گوید که وی نه از مار می‌ترسد و نه از ریسمان، درحالیکه از جملۀ خاینین است. چون تاوان و تلفات زیانبار این مار و ریسمان را مردم می‌پردازد نه او.

اما اینکه می‌گوید که ما عقل داریم و با تدبیر به پیش می‌رویم و آنچه را انجام می دهیم که عزت کشور در آن مصئون باشد. کاملاً دروغ می‌گوید. زیرا عقلش برای منافع مردم افغانستان نه، بلکه برای منافع بادارانش خدمت نموده است. هیچ مورد متذکرۀ فوق موضوعی نیست که درآن عزت مردم این کشور مصئون شده باشد. بلکه همه برای تحقق اهداف اشغالگران و استعمارگران بوده و هست .

اشرف غنی از تجربه ی داکتر نجیب الله صحبت نمود که وی بعد از اتکا به ملل متحد، بجای نجات به حلقه دار آویزان شد. سرنوشت غنی نیز بعد از یک عمر خدمت به استعمار ذلت و سرخمی خواهد بود؛ زیرا هر حاکمی که به غیر از درگاه الله سبحانه وتعالی به جایی دیگر اتکا کند و استعانت بجوید به چنین سرنوشت ذلت باری مواجه می شود که در نهایت استعمار از وی نیز رو برمیگرداند .

اشرف غنی نسبت به داکتر نجیب، شاه شجاع و یعقوب خان بدترین اعمال را برای تحقق منافع بادارش در حق مردم افغانستان انجام داده است. لذا رابطه اش با مردم مسلمان و مجاهد افغانستان قطع شده است. رابطه اش با الله متعال قبل ازین قطع شده بود و اینک رابطه اش با امریکا نیز در حالت قطع شدن است. لذا امریکا و طالبان در مذاکراتش وی و نظامش را به کلی دور می‌زند و او نیز عذاب وجدانش را در سخنرانی‌ها بازگو می کند. پس عبرت بگیرید؛ این است سرنوشت یک مزدور استعمار!

كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿۲۵﴾ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿۲۶﴾ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ﴿۲۷﴾ كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴿۲۸﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ﴿۲۹﴾ سورۀ دخان

چه باغها و چشمه‌سارهای زیادی از خود به جای گذاشتند! و کشتزارها و اقامتگاههای جالب و گرانبهائی را. و نعمتهای فراوان (دیگری) که در آن شادان و با ناز و نعمت زندگی می‌کردند. این چنین بود (ماجرای آنان) و ما همه‌ی این نعمتها را به قوم دیگری دادیم. نه آسمان بر آنان گریست و نه زمین، و نه بدیشان مهلتی داده شد (تا چند صباحی بمانند و توبه کنند و به جبران گذشته‌ها بپردازند).

[۱]سازمان ملل از داکتر نجیب خواسته بود تا با اداره انتقالی غیر جانب دار موافقت کند تا آن اداره، زمینه یک نظم سیاسی نوین را فراهم کند و جنگ در کشور پایان یابد. در مقابل سازمان ملل نجات جان داکتر نجیب را تضمین کرده بود. با این حال این سازمان نتوانست جان نجیب را نجات دهد و جنگ در افغانستان نیز پایان نیافت.

[۲]شاه شجاع، معاهده لاهور را در سال ۱۸۳۸ با رنجیت سینگ و بریتانیای وقت به امضا رساند. در سال ۱۸۳۹ شاه شجاع به کمک بریتانیا وارد قندهار شد و اعلام پادشاهی کرد.

" [۳]معاهده گندمک" میان امیر محمد یعقوب خان و سر لوئیس کیوناری، نماینده سیاسی انگلستان در تاریخ ۲۶ می ۱۸۷۹ امضا شد که این معاهده‌ها در نهایت منجر به امضا "کنوانسیون کابل" یا معاهده دیورند در سال ۱۸۹۳ میان امیرعبدالرحمان خان و سرِ هنری مورتمور دیورند شد.




# سنګیانګ کې ستر بشري ناورین

## او د نړۍ دردوونکې چوپتیا

حسن مومند

چین دنوروهېوادونو په کورنیو چارو کې مداخلې نه کوي او نه هم پرهېوادونو یرغلونه کوي بلکې خپل صنعت ، زراعت تجارت ته وده ورکوي او دټولې نړۍ سره دښو روابطو له لارې خپلو ارزانو مصنوعاتو ته په نړۍ کې مارکیټونه پیدا کوي.

دا ډېره ښه ده چې دچین بهرنۍ پالیسي- دامریکا او نورو لویدیځوالو غاصبو هېوادونو په څېر نده ؛که یې بهرنۍ کړنلاره دامریکا او نورو لویدیځوالو زبر ځواکونو کړنلارې ته ورته وای نو دنړۍ ټولومسلمانانو به ورته همداسې دنفرت په نظرکتلای لکه امریکا اونوروغاصبوهېوادونوته چې ګوري او زموږ په څېر وړو او کمزورو هېوادونو سره ګاونډیتوب به یې ډېر دخطرونو او اندېښنو ډک او دګاونډیو په شمول به یې دشرنه دسیمې یو کمزوري هېواد هم خوندي نه وای .

نودا چې دچین نفوس دنړۍ دبل هر هېوادنه لوی دی ؛ستره جغرافیه لري اوس یې په نظامي لحاظ دنړۍ دسترو عسکري طاقتونو سره سیالي برابره شوې او اقتصادي پرمختګ یې له بل هر چاتېز دی خوسره له دې هرڅه یې ګاوندي اویا دسیمې بل هېواد ته ضررنه رسېږي نودادې هېواد دمثبت سیاست په زړه پورې اړخ دی.

چین کې چې نظام کمونستي دی او پخپله دیموکراسۍ ته ژمن هېواد ندی نو د امریکا اونورواشغالګرو غربیانو په څېر دیموکراسي چاته نه مخې مخې ته کوي ؛نه دکوم هېواد سره ددیموکراسۍ دنه شتون له امله دښمني کوي او نه هم دچاپر ضد دنظامي ګام پورته کولولپاره دیموکراسي او دبشر حقوق پلمه کوي.

اوداچې چینایان دکوم مذهب سره تړاو نه لري بلکې قاطع اکثریت یې دهریان دي نو ځکه چینایان دچین نه بېرون دچاسره ددین او مذهب پربنسټ دښمني نه کوي او دنړۍ مسلمانان مطمئن دي چې چین زموږ دین او کلتور ته دضرر رسولو ارادې او شوم پلانونه نه لري او نه ترې تراوسه داسې کوم حرکت ترسترګو شویدی چې په حتمي ډول په اسلام دښمنۍ تعبیر شي.

خو په چین کې دننه چې ددولت له لورې دچین دمسلمانانو سره کوم له حده زیات ناوړه سلوک کېږي نو لړلیک یې ډېر اوږد او خورا له درد او اندېښنو ډک دی.

هسې هم په نړیوالو رسنیو کې پدې اړه خبرونه راتلل خوځه موده دمخه چې په برتانوی جریدې ډیلي ټیلیګراف کې په پدې اړه مفصل راپورخپور شو نودنړیوالوتوجویې ځان ته راجلب کړه ؛ په راپورکې راغلي وچې له تېرو څومیاشتو راهیسې دچین دولت د یوغور مسلمانانو پرضد سختو اقداماتو ته زور ورکړیدی؛دجوماتونو امامانو ته یې دږېرو خریلو حکم کړیدی؛دجوماتونو سره دتړلو ټولو مدرسو دتړلو فرمان یې صادر کړیدی او د ۱۷ کلونو نه دکم عمر لرونکي هلکانو او انجونو ته دناظره قرآن کریم ویلو اجازه یې هم لغوه کړیده .

دولت امامانو ته حکم کړیدی چې له دې بعد به په عربي نه بلکې چینایې ژبه دجمعې خطبه ورکوي ترڅو پرې پولیس او امنیتي ځواکونه پوه او له ځان سره یې ثبت کړي.

امامانو ته دا حکم هم شوی چې په جومات کې دننه دخطیب دممبر سره په څنګ کې به دچین بیرغ ګدي او دممبر سره نېږدې دقبلې پرديوال لمونځ کونکو ته مخامخ به دچین ملي ترانه لیکي او

دمخالفت په صورت کې به جومات بندېږي او امام به زندان ته لېږل کېږي.

یوغوري مسلمانان وايي چې سږ کال دچین دولت دمکاتبو او پوهنتونو زدکونکي او په نورو دولتي ادارو کې کار کونکي روژې نیولو ته ندي پرېښي؛جبراً یې کانتینونو ته راغوښتي دي؛خوړلو او څښلو ته یې اړ کړي او روژه یې پرې ماته کړېده.

دولت دیوغورې مسلمانانو په هرې کوڅې کې کمرې نصب کړيدي ترڅو ددوئ هرنقل حرکت تعقیب کړي چې دې کار په ټولو یوغوري مسلمانانو کې سخته وېره خپره کړېده.

همدا راز دچین دولت په عام محضر کې دمسلمانو مېرمنو دلباسونو پرې کولو او دعامو خلکو پروړاندې یې دتوهینولو لړۍ هم پیل کړېده.

څو ورځې وړاندې دبرتانې په یوې مشهورې جریدې بزنس انسایډر کې پدې اړه یو خپور شوي مضمون کې راغلي و چې دچین امنیتي ځواکونه په ډېرو سختو ټکومسلمانې مېرمنې داسلامي لاربښونو سره سم دهرداسې لباس په تن کولو نه منع کوي چې پرې ټول بدن پټېږي او چې داسې مېرمن وموندل شي چې لوی کمیس یې پرتن وي نو دچین پولیس او امنیتي ځواکونه یې دسرکونو په سر او بازارونو کې کمیسونه ورپرې کوي اوپه عام محضرکې یې توهینوي.

پولیس او نور امنیتي ځواکونه دسرکونواولارو په سر ټولې هغه مسلمانې یوغورې مېرمنې ودروي چې ددیني لاربښوونو او ددوئ دخپل کلتور سره برابر اوږده قمیصونه یې پرتن وي ؛ قمیصونه یې په قینچې پرې کوي او دقمیصونو همدومره پورتنۍ برخه یې پرېږدي چې یې پرې ملا او خیټه پټه وي چې له دې امله چینایي مسلمانې مېرمنې دسختې وېرې ښکار شویدي.

نوموړې برتانوۍ ورځپاڼې دداسې مېرمنو عکسونه هم خپاره کړيدي چې پولیس یې په عام محضر کې دګڼو خلکو تر مخه قمیصونه پرې کوي .

ورځپاڼې هم منلی ده چې دا په چین کې داسلامي هویت دختمولو په لړ کې یونوی جدي اقدام دی.

دیادې جریدې ځانګړې نماینده ویلي دي چې د سنګیانګ په لسګونو مېرمنو محاکمو ته پدې اړه خپل شکایت وړاندې کړ خو محاکمو ددولت دپرېکړې ننګه وکړه او ویې ویل چې چینایې مېرمنې اجازه نه لري چې اوږده کمیسونه یا بوکرې پرتن کړي؛باید چینایې مېرمنې بنیان او نیکر یا پتلون پرتن کړي چې همدا دچین کلتور دی.

دمسلمانو مېرمنو دکمیسونودپرې کولو داعکسونه ریډیو فري ایشیا نومې چینل هم خپاره کړيدي او ویلي یې دي چې دچین دولت دیادو اقداماتو له لارې د ۱۵ میلیونو یوغوري مسلمانانو دیني هویت له منځه وړل او مذهبي ازادي یې ختمول غواړي.

دچین ددولت له لورې دظلمونو دا لړۍ روانه وه چې ترڅنګ یې له څه مودې راهیسې په نړیوالو رسنیوکې په مسلسل ډول داسې خبرونه هم خپرېدل چې په سنګیانګ ولایت کې دچین دولت له لورې ځایې مسلمانان دسخت ظلم ښکار دي اومذهبي آزادي خو ډېره لرې ده له مدني حقوقو او آزادۍ نه هم په کلي ډول محروم کړای شویدي اودا معلومه شوې چې دچین دولت دسنګیانګ په سونوزره مسلمانان دتربیوي مرکزونوپه نوم ځانګړو کمپونو ته راټول کړيدي .

دولت دې ځانګړو کمپونو ته ددوئ دراټولولو لپاره داپلمه جوړه کړېده چې دولت غواړې ددوئ تربیه وکړي اودوئ دچین دکلتور او ټولنیزو اصولونه خبر کړي خوپه حقیقت کې دا ددین نه ددې مظلومومسلمانانودلرې کولو اوبې زاره کولو دسخت وحشت نه ډک کوښښ دی. دې کمپونوته راوستل شوي دامسلمانان ددولت له لورې دسختو فزیکي او رواني سکنجو سره مخامخ دي اوربښتیا داده چې داتربیوي مرکزونه نه بلکې دوحشت نه ډکې عقوبتخانې دي چې پکې سړو اومېرمنو سره سخت بد اوبې ساري نا انساني سلوک کېږي ؛ دشرابو په څښلو اوخوګانو،سپیوو، پېشوګانواونورو ټولو هغو وحشي حیواناتو غوښو خوړلو ته اړایستل کېږي چې اسلام یې حرام ګڼي اودچین مسلمانان ترې په خپل ژوندکې ځان ژغوري ؛ پدې مرکزونوکې مسلمانې مېرمنې دسړو ترمخه بې لباسه اورقص کولوته اړایستل کېږي ؛ یوه مېر من

هم دې ته نه پرېښوول کېږي چې دخپل محرم یا مېړه سره په څنګ کې بستره واچوي بلکې ټولې مکلفې وي چې دپردوسرویوځای شملي .

**پدې مرکزونوکې هیڅ‌ته دلمونځ اجازه نه ورکول کېږي اوټول په روژې خوړلو مکلف وي او داهرڅه ددې لپاره چې داسلام دحل اوحرمت احکام دې مسلمانانوته بې اهمیته وښایې .**

په سرکې داخبرې دچین پرضد دتبلیغاتو یوه برخه ګڼل کېده او ویل کېدل چې دداسې خبرونو ترشا دچین دمخالفې غربي نړۍ اوپه ځانګړې ډول دامریکا لاس دی خو اوس چې داملګرو ملتونو دنسلي تعصباتو دڅېړنې لپاره دجوړې شوې ادارې له لورې په خپورشوي راپورکې راغلي دي چې په سنګیانګ کې دمسلمانانولپاره جوړوشویوکمپونویا حراستي مرکزونوکې دیوملیون نه زیات مسلمانان دمذهبي اومدني آزادۍ نه بې برخې ګرځول شوي اودسخت دولتي جبر او ظلم ښکار دي نو ایله ټولو ومنله چې داهسې تبلیغات ندي بلکې په رښتیا هم دامسلمانان دسخت وحشت ښکار دي ؛ اوس دافکر پخوانی دی چې داسې خبرې دمخالف تبلیغات وګڼل شي اوله پامه وغورځي .

دابېخي داسې ده لکه نیمه پېړۍ وړاندې چې دروسانو له لورې په منځنۍ آسیا کې دمذهبي او مدني آزادۍ دترپخولاندې کېدلواوسخت وحشت خبرې رامخې ته شوې او پرضد یې اواز پورته شو نو ډېرو کمونستانو او دکمونستانو دتبلیغاتو نه اغېزمنو شویوخلکوبه ویل چې دا د امریکا اونورې لویدیځې نړۍ تبلیغات او دشوروي اتحادپرضد دغرب دروان سوړ جنګ مهمه برخه ده خو چې کله روسانو په افغانستان کې دافغانانودجهادپه برکت ماتې وخوړه ؛ شوروي اتحاد ټوټه ټوټه ؛دمنځنۍ آسیا هېوادونه آزاد اودنورې نړۍ مسلمانان دې هېوادونو ته ورغلل نو بیا ایله معلومه شوه چې دې هېوادونوکې ظلم او وحشت دهغې نه هم زیات و چې څومره یې خلکو یادونه کوله ؛ دلته دمسلمانانو په ملي او مذهبي آزادۍ کلي بندیزونه وو ؛ دټولوجوماتونو دروازې تړلې شوی وې ؛ په دیني لارښوونوبندیز و ؛ دمدرسونه اصطبلونه جوړ شوي وو ؛ اونور خو پرېږده چې دقرآن له ځان سره ساتل اودکلمې طیبې ویل بلکې دالله اودرسول الله صلی الله علیه وسلم نوم اخستل هم جرم ګڼل کېدلو

نوځکه پدې هېوادونوکې ډېرى داسې ځوانان وو چې کلمه هم نه ورتلله اوکومو ته چې یاده وه نوهغوئ په توروشپوکې په پټه له خپلومشرانو زدکړی وې .

نوچین کې هم نن ددولت له لورې دمسلمانانو سره هماغسې دوحشت نه ډک عمل روان دی او خبره له دې وتې ده چې ووایو یا داګومان وکړو چې ګینې دچین پر ضد دامریکا یا نورې غربي نړۍ له لورې تبلیغات روان دي اوس ددې وخت دی چې ددې مظلومو مسلمانانوپه حق کې اواز پورته اودې خبرې ته چې څومره توان وي زور ورکړل شي .

ددې مظلوموسلمانانوپرضد سخت وحشت روان دی خو هیڅوک یې دپوښتنې نشته .

دملګرو ملتونواداري یانورو بشري نړیوالو ټولنو چې ددې مسلمانوپرضد دروان وحشت په اړه راپورونه خپاره کړل ؛ نړۍ یې ترې خبره کړه ؛ پدې اړه یې داسې کره شواهد وړاندې کړل چې دچین لپاره یې دانکارځای پرې نه ښود اوچین ته دا روښانه شوه چې دمسلمانانوپرضد روان وحشت یې نور له نړۍ پټ نه شي پاتې کېدا ی او نه پرې نړۍ چپه خوله پاتې کېدای شي .

**زما په اند همدومره کافي ده ؛ دملګرو ملتونو د اداري او دبشر دحقوقو په نوم دنړیوالو ټولنو نه له دې اخواته نوره هیله نده پکار ؛ په نړۍ کې که پرمسلمانانو کوم دولت ،کوم تنظیم یا ډله هرڅومره ستر ظلمونه وکړي دملګرو ملتونو اداره ، اروپایي اتحاد، ناټو یابل کوم اتحاد یې پرضد عملي اقدام نه کوي اونه به یې وکړي.**

په نړیوالو رسنیو کې ددې کمپونواود مسلمانانو سره ددې بد سلوک خبره رامخې ته شوی خوپر ضد یې اسلامي نړۍ کې یواځې ترکې غبرګون ښکاره کړی ؛ دترکې دبانډنیو چارو وزارت دروان کال په فروری کې دچین دمسلمانانو سره ددولت ددې ظلمونو اوبدسلوک په اړه احتجاج کړی ؛ دایې دانسانیت لپاره ډېر دشرم نه ډک عمل ګڼلی اوبې قیدوشرط یې ددې حراستي مرکزونو

دبندولواوپه دولتي سطحه ددې ستر وحشت دپای ته رسولوغوښتنه کړی ؛ دترکې دباندنیو چارو وزیر حامی اکسوی ویلي چې دا خبره اوس پټه پاتې نده چې چین پدې مرکزونوکې دیوملیون نه زیات ایغور مسلمانان زندانیان کړیدي اوددولت له لوري ورسره ډېر بد سلوک روان دی ؛ موږ چین پدې اړه دخپلو اندېښنو نه خبر کړیدی خودچین دولت پدې اړه کوم مثبت قدم ندی پورته کړی ؛ انقرې دنړیوالې ټولنې اودملګروملتونو دسرمنشي- نه غواړي پدې چې پدې اړه دې څېړنې وکړي اود چین پر ضد دې عملي ګامونه پورته کړي .

دچین دولت پدې اړه هسې دځان خلاصولو لپاره یوه مبهمه خبره کړی او ویلې یې دي چې دوئ ددې لګکیو دکلتور اومذهب ساتنه کوي اودسنګیانک امنیت ته دمتوجې امنیتي خطرونو دمخنیوي په موخه دلته دسخت دریځو پرضد اقدامات اړین دي .

دتأسف ځای دادی چې له ترکې پرته بل یواسلامي هېواد اونه هم اسلامي کانفرانس پدې اړه خوله خلاصه نکړه نوځکه اوس دایغور مسلمانانو نه پس اوس دقازق قبیلې سره تړاولرونکو مسلمانانو پر ضد هم ورته اقدامات پیل شوي پدې اړه واشنګټن پوسټ کې نوي خپور شوي راپور کې اوتان نومي یوقازق ویلي دي چې په ځانګړو کمپونوکې ددوه کلنو بې حده زیاتو تکلیفونو لیدلو نه پس چې را آزاد شویدی په کمپ کې وربانديې تېر شوي ظلمونه دومره وېرونکې دی چې یې درواني سختې مریضتیا ښکار کړی؛ په خوب کې همدا ویني اوپه ویښه هم هغه داضطراب او پرېشانۍ ښکار وي چې زما دې رواني تکلیف زما په بچواومېرمنې هم بد اثر کړیدی .

داوتان مېرمن وویل چې دمېړه لټون مې ډېر وخت واخست ، دچین دامنیتي ادارو ډېرو مرکزونو باندې وګرځېدم ؛ د۲۰۱۸ په وروستیوکې مې مېړه کورته راغلو خومتأسفانه چې هغه اوس هغسې سړی ندی پاتې څرنګه چې هغه و؛ هغه اوس په رواني لحاظ ډېر بدل شویدی ؛ څه کله کله له ځان سره وایم شاید دمېړه همشکله پردې سړی مې کورته راغلی وي .

دیادې ورځپاڼې په راپور کې راغلي دي چې دچین دولت دهغوسړو اومېرمنو پر ضد دظلم نوې لړۍ پیل کړی ده کومو چې په قازقستان کې ودونه کړیدي ؛ دوئ اوس دسختو مشکلاتو اوقانوني بندیزونوسره مخامخ دي .

دیادولو وړ ده چې دقازق نسل سره تړاو لرونکي مسلمانان هم په سنګیانګ کې مېشت دي .

دسنګیانګ ولایت دمسلمانانو داکثریت تړاو د ایغور قوم سره دی خوپدې ولایت کې قازقان ، تاتاریان ، کرغیز ، تبتیان اومنګول هم مېشت دي .

دسنګیانګ پخوانی نوم کاشغر دی چې په اسلامي نړۍ اوپه ځانګړي ډول ګاونډیومسلمانانوکې اوس هم په همدغې نوم یادېږي ؛ ۱،٦ ملیونه کیلومتره مربع مساحت لري چې دا دچین دټول مساحت ۵ سلنه ده ؛ ددې ولایت دنفوسو شمېر ۲۱ملیونه دی چې ۱۵ ملیونه یې دایغور قبیلې سره تړاو لري خو دولت دوئ ۱۱ ملیونه ښکاره کوي .

سنګیانګ ډېر ستر جغرافیایي موقعیت لري ؛ داستر ولایت په جنوب کې دتبت ، جنوب شرق یې دشنګهای اوګانسو ولایتونوسره لګېدلې اوشرق یې دمنګولیا ، شمال یې دروسې اولویدیځه برخه یې قازقستان کرغزستان ، تاجکستان ، افغانستان قبضه شوي کشمیر اوپاکستان سره لګېدلې ده .

هان نسل چې په دولتي پوستونویې قبضه ده او همدوئ دچین اصل حاکمان ګڼل کېږي په تېرو وختونوکې یې پدې ولایت کې ایله ۵ فیصده وګړي مېشت وو خوپدې ولایت کې دمسلمانانو دکمزوري کولو لپاره دولت دځانګړي پلان له مخې دلته دهان نسل ډېر زیات خلک مېشت کړل چې اوس پدې ولایت کې دهان نسل وګړو فیصدي۴۰ ته لوړه شویده .

دسنګیانګ ولایت دقازقستان سره ۱۷٦۰ کیلومتره اوږده ګډه پوله لري چې له امله یې ددواړو لوروخلک دیوبل سره په اسانۍ تله راتله تجارت اوحتی دیوبل سره ودونه کوي خو اوس چې دایغوریانونه پس قازقان هم دچین ددولت دعتاب ښکار شویدي نو دسختو مشکلاتو سره مخامخ دي .

دچین سره نېږدې ټول اسلامي هېوادونه ښه روابط لري ؛ ماتــه کوم داسې هېواد ندی معلـوم چـې دچـین سره کومـه سـتره سـتونزه ولري چې داد چین لپاره ډېره لویه خبره ده ؛ بل داچې اسـلامي نـړۍ دچین دمصنوعاتولپاره ډېرلوی مارکیټ دی چې چـین هـم داسـلامي نړۍ پدې اهمیت پـوهېږي نوکـه دترکـې پـه څېـر نـورمهم اسـلامي هېوادونه لکه سعودي عربستان ،ایران اوپاکستان هـم ددوسـتۍ پـه فضا کې خوپه معقول او کلک انداز دچـین نـه ددې بشري نـاورین دپای ته رسولوغوښتنه وکړي خامخا اثرکوي.

چین چې دچاپـه کورنیوچـارو کـې لـه مـداخلې ځـان سـاتي اودنورو ملتونو سره دمذهبي اختلاف لـه املـه دښـمني نـه کـوي دا دچین ښه پالیسي ده خو دچین حاکمانو کې یولوی نقصان دادی چـې دبهـر نـړۍ دحـالاتو ، تحولاتـو ؛ سـیاسي بـدلونونو ؛ پـه نـړۍ کـې دجنگونواوبـدو حـالاتو درامنځتـه کولولپـاره دلویوزبرځواکونـود شوموپلانونو اوله دې لارې دخپلو اهدافو پوره کولو اوداسـې نـورو نړیوالو خبرونه ځان نه خبروي اونه ورتـه هغـومره اهمیـت او توجـو ورکوي څومره چې پکار ده نوخپلې پرېکړې اوعمـلي اقـدامات چـې کوي هیڅ یې په خیال کې داپوښتنه نه راځي چې په بهـر نـړۍ کـې به ددې اقدام یاپرېکړې عکس العمل اواغېزې څه وي ؟

ټوله اسلامي نړۍ پدې پوهېږي چې په اسلامي هېوادونو کـې دجنگونو، بدامنیواوټولو ناخوالو اصل لامـل داسـلامي نـړۍ پـه اړه دامریکـا غاصبه پالیسي- اواسـلام دښـمني ده نوځکـه دنـړۍ ټـول مسلمانان د امریکایانو اودنوروغاصبوغربیانو نه سخته کرکه لري .

امریکایان اونور لویدیځوال بـه پـه ټـولې اسـلامي نـړۍ کـې ازادانه گرځېدل اوسړي خوسړي وو مېرمنو به یې هم بې لـه کـومې وېرې لروپرتوسیموته دیوې کامرې سره سفرونه کـول چـې اوس پـه سترو ښارونوکې هم ددوئ دداسې گرځېدلو تصـور نـه شي کېـدای خـوبرعکس چـین هیڅـوک پـه اسـلامي نـړۍ کـې دجنگونـو بدامنیواونورو ناخوالولامل نه گڼي نو ورسره دښمني هـم نـه کـوي؛ چینایان دټولې اسلامي نړۍ په هر هېـوادکې گرځـي اوهـیڅ دوېـرې احساس نه کوي چې دادچین لپاره ډېره دگټې نه ډکـه خبره ده ځکـه چې پدې سره اسلامي نړۍ دچین دمصنوعاتو لپاره ډېر ستر مارکیټ گرځېـدلی دی او پـه راتلـونکي کـې همـدا اسـلامي نـړۍ دچـین دپانگونې لپاره ډېر پراخـه ډگـردی نـودچین گټـه پـدې کـې ده چې دداسې اقداماتونه ډډه وکړي چې تـرې د اسـلام اومسـلمان دښـمنۍ بوی هم راځي .

لرې به نه ځو دچـین پـه گاونـډکې دهنـد پـه نـوم هېـواد کـې دهندوانو قاطع اکثریـت دی خـو د دوه نـیم سـوه ملیونـو نـه زیـات مسلمانان هم پدې هېوادکې ژوندکوي ؛ دامسـلمانان پـه لسـگونه زره غټــې او وړې مدرســې اوجوماتونــه لــري ؛ پــدې مدرســوکې دمسلمانانوبچوته یواځې ناظره قرآنکریم نه بلکې ټول دیني علـوم او فنون ورښوول کېږي ؛ دمسلمانانوپه مخونوړیرې هـم وي ؛ مسـلمانې مېرمنې ستر اوپرده هم کوي ؛ مسلمانان روژې نیسي ؛حـج اوعمـرې تـه ځـي ؛زکاتونـه اونورعبادتونـه کـوي اوخپـل کلتـور اومـذهبي تشخص اوهویت یې هم ژوندی ساتلی دی خودې هیڅ هم هندتـه پـه امنیتي یابل لحاظ کوم تاوان نه بلکې دهند ددولت دخپلو اعترافونـو له مخې یې ورته ډېرې گټې رسولي دي نوچین چې امنیت ،پـولیس او امنیتي ځواکونه یې په نړۍ کې ساری نـه لـري دکمـواوکمزورو مسلمانانو لوی کمیسونه ، ږیرې ،روژې اودقرآنکریم تعلیم بـه ورتـه څه تاوان ورسوي ؟؟؟

هـو ! دمسلمانانوپرضـد اقـدامات دچـین لپـاره پـه نـړۍ کـې دبدنامۍاوپه مسـلمانانوکې دمنفورکېدوسـبب کېـږي چـې دا دچـین لپاره ډېره دتاوان نه ډکه خبره ده ؛ نو چین باید پـدې پـوه شي چـې دا مسئله ډېره حساسه ده اودنړۍ ټـول مسـلمانان دسنگیانگ مظلومـو مسلمانانو سره دچین دې ناانسـاني سـلوک سـخت دردولي دي ؛ کـه چین دمسلمانانو په اړه پرخپلې کړنلارې له سره غـوروکړ اودوحشـت دې روانې لړۍ ته یې دپای ټکی کېښود نودا به دچـین پـه گټـه وي گینی بیابه دنړۍ مسلمانان چینایانو ته هم په هماغه نظر گـوري لکـه امریکایانو اودنورواسلام دښمنوغاصبو هېوادونـو اتباعوتـه چـې پـه کوم نظر گوري چې دابه دچین لپاره ډېره دتاوان نـه ډکـه خبره وي ؛ ماته داسې نه ښـکاري چـې دنـړۍ دټولومسـلمانانو دښـمني پـه سر اخستل به گینی دچین لپاره دزغم وړوي.

خلیل ـ عزیز

# آیا د هند او پاکستان اختلافات د کشمیر په سر دي؟

دیني او جغرافیایي اختلافات ددې باعث وګرځیدل چې هندوستان څو ټوټې اوسره وویشل شي چې ړومبی یې پاکستان او بیا ورسته بنګلدیش هیوادونه مخې ته راتلل یې ژوندی مثالونه اوحقائیق دي

دپاکستان اوهند ترمنځ کړکیچونو په یواځې ځان جغرافیاوي مسائیل او سیالی ندی ، بلکې ددواړو هیوادونو دپرګنو ترمنځ مذهبي نفرت هم یکې اوج ته رسیدلی تردې چې هندوان اودپاکستان مسلمانان دیو بل وینو بهولو ته همیشه تږي ناست وي او یو تربله جګړه مقدسه بولي

## دکشمیر په سر اختلاف :

جموکشمیر ایالت د هند په شمال غربي اودپاکستان په شمال شرقي برخه کې پروت دی ، دپاکستان له جوړیدو مخکې جمو کشمیر د مهاراجه له ایالت څخه بلل کیده ، هند په دې پلمه چې مهاراجه یعني دهندوالانو په عقیده ( لوی شاه ) اوهندو وو او په جمو کشمیر یې ګڼ کلونه واک چلولی وو له همدې امله په هره بیه چې وي کشمیر باید دهند برخه وګرځي

له بل اړخه چون دکشمیر خلک ۹۰ فیصده مسلمانان دي هغوئ عقیدتا چمتو ندي چې دهندوستان برخه اوحصه جوړه شي.

دکشمیر په سر دغو اختلافاتو دهند اوپاکستان ترمنځ درنی اوخونړی جګړي ترسره شوي ، په ۱۹۴۸ م دجولای په میاشت کې ددواړو هیوادونو ترمنځ زیان اړونکي جګړه وشوه چې له اوربند ورسته موضوع ملګرو ملتونو ته وړاندې شوه دملګرو ملتونو دامنیت شورا یو پلاوی وټاکه ، پلاوی غوښتنه وکړه چې نوموړي ستونزه دې دکشمیر دخلکو په رایو اوخوښه حل کړل شي

له همدې امله دپاکستان رسمي موقف داده چې دکشمیر خلک بائید دملګرو ملتونو دمکررو پریکړه لیکونو له مخې داحق ولري چې دخپل سرنوشت په باب تصمیم ونیسي

هند وایي چې کشمیر دمهاراجه دپریکړي له مخې چې په ۱۹۴۷ کال کې پرې هند لاسلیک کړی دهند برخه ده دکشمیر مسئله دنورو مسلمان نشینو برخو په څیرچې دپخوانی برتانیا شیطانت جرړو پکې ځای اودخل نیولی نارامه ، له غمونو اومصیبتونوډکه سیمه ده.

په ټولو نقطوکې چې انګلستان دپولو دتعین او معلومولو په برخه کې دریم ګړی پاتی شوه نه داچې هغه شخړي یې حل کړي ندی بلکې نور یې هم ترمنځ دتربګنیو او ستونزو اورونه بل کړي چې کشمیر هم له هغو نقطو څخه دی چې پخوانی برتانیا پکې دپولو دتعین په برخه کې ګډون درلود ، چې تراوسه یې دغه سیمي نارامه کړي او ولسونه ترینه رنځیږي .

## دابو په سر لانجه :

دغه راز دهند اواوپاکستان ترمنځ دابو په هغو سیندونو چې له هند څخه سرچینه اخلي او دکشمیر په لاس پاکستان

پە دې ورستیوکې هندوستان تصـمیم نیـولی ترڅـو نومـوړي سـیندونه پـه بلـه مخـه کـړي او دپاکسـتان لــه اسـتفادي یــې راوګرځوي  دابو پە سر لانجە هم لـە کشـمیر ورسـتە دهنـد اوپاکسـتان ترمنځ لە مهمو شخړو بلـل کیـږي ، پاکستان وایی که چیري هندوستان دسـیندونو لار ډب کـړي او د۱۹٦۵ کـال لـه قـرارداد چـې پاکسـتان تـه دابو په رسیدو صراحت لري خـلاف ورزي وکړي نو پاکسـتان بـه اړ شي



چې له هند سره جګړه پە مخ کې ونیسي

که څه هم دپاکسـتان او هنـد تـرمنځ دپریکنـده جګـړي شونتیا لیري بریښي ځکـه دواړه هیوادونـه پـه دې معتقـد دي چې جګړه دیوه هیواد پە ګټه هم نه شي تمامیدای او یو هیـواد هم پە نظامي میـدان کـې ددې وړ نـده چـې بـل پـرې غالـب اوبرتري پیداکړي ، نو دواړه هیوادونه کوشش بـاسي چـې دیـو بل پە سرو کرښو پښي کینږدي ، که څه هم دامریکا پە ګـډون ځیني هیوادونه هڅه کـوي چـې هنـد اوپاکسـتان نـور هـم پـه مخالفتونو کې ایسـار او حتـی تـرمنځ یـې اوږدي جګـړي وشي ترڅــو پــه پایلــه هنــد اوپاکســتان دواړه دامریکــا مغــرض منځګړیتوب اولاسو هني تە غاړە کیږدي ، چې دامریکـا دخـل اندازي بیا دیوه هیواد پە نفع او ګټه هم نشي تمامیدای

خو دایوه خبره ښکاره ده چې پاکستان دکشـمیر موضـوع لە تیرو ۷۵ کلونو راهیسي سړیدو او خاموشـه کیـدو تـه نـه ده پـرې ایښـی ، زیـاریې ایسـتی چـې پـه بـین الملـلي سـطحه دکشمیرموضوع توده وساتي ، تردې چې دملګرو ملتونو پە هره سرمشریزه ده چې دپاکستان ږومبیو وزیرانو دکشـمیر مسئله راپورته کړي او هندوستان یې دکشمیري ولس پە قتـل عـام او دهغوئ د خود ارادیت پە حق ګرم اوملامت بللی

تە عبور کوي پە یولړ پیچلو مسائیلو اوښتي بلە دواړو هیوادونو څخە بهیږي کړاوونه زیږولی

داهــم یــو حقیقــت دی چــې کلــه دهنــد لویــه ځمکــه دپاکستان او هند پە نومونو وویشل شوه اصل او بنیاد یـې داوه چې هرچیرتە مسلمانان زیات وي هغە بە دپاکسـتان برخـه وي او کوم اړخ تە چې هندوان ډیروي هغه به دهند حصه جوړیږي

څرنګه چې دکشمیر ۹۰ فیصـده خلـک مسـلمانان وو ؛ نـو باید کشمیر  له پاکستان سره یوځای شوی وای ؛ خو دغه قاعده دهغه مهال برتانوي قاضي (رید کلایف) رعایت نکړه دغه اصـل یې ګونګ او لاینحل پریښود چې تراوسه دکشمیر  د مسـلمانانو ویني بهیږي او ددو ګاونډیو هیوادونو وربانـدي کلکـه سـیالي روانه ده .

له بل اړخه کشمیر  دځمکني موقعیت او دابـو دسرشـارو اومستو سرچینو او ردونو له امله هند اوپاکسـتان تـه ځـانګړی اهمیـت لـري یعنـي دابوبهیـدونکي زیرمـي دمګـړی نیمـي دپاکستان او نیمي هم دهندوستان خاورو تە بهیږي ، اوبه هـم هغـه مهـم شـخړي دي چـې هنـد اوپاکسـتان لـه ۱۹۴۷ کـال راهیسي ورسره لاس اوګریوان دی او هریو دځان لپاره حیاتي او نه تیریدونکي مسایل بولي.



# په عمر رضي الله عنه د چپنې اثر

م عبدالله

د حضرت عمر فاروق رضي الله تعالی عنه په اړه په روایتونو کې راځي چې نوموړی یوځل مسجد نبوي ته د خطبې لوستلو لپاره راغلی چې یوه ډیره خوندوره چپنه یې پر تن وه. کله چې له خطبې څخه فارغ شو نو کورته ولاړ، چپنه یې وکښل او ویې ویل چې بیا به دا چپنه نه اغوندم، ځکه چې په اغوستلو سره یې زما په زړه کې لویي او تکبر پیدا شو ځکه یې آئنده نه پر تن کوم. حال داچې هغه چپنه خپله داسي شی نه ؤ چې حرام دي وي، مگر الله تعالی چې د چا طبعیتونه شفاف گرځولي وي هغوی ته وړه بده خبره هم ډېره ستره ښکاري. د دې مثال داسي وگڼئ لکه یوه جامه چې داغ درلودونکې وي او هر ځای پرې ټکي لگېدلي وي په داسي حال کې که پر هغه جامه یو بل داغ ولگیږي نو پر جامه یې اثر بیخي ښکاریږي هم نه.

زمونږ هم همدا حال دی چې زړونه او سینې مو له داغونو او ټکو ډک دي، ځکه خو که د شریعت خلاف کوم څه زمونږ په ژوند کې پېښېږي نو د هغه د ظلمت او بدۍ احساس هم مونږ ته نه کیږي. د کومو کسانو زړونه چې الله تعالی د شیشې په څیر صاف گرځوي، د هغوی مثال داسي دی لکه یوه صافه او سپینه جامه چې وي پر هغه جامه که معمولي غوندي ټکی هم ولگیږي نو له ورایه ښکاریږي. همداراز د الله تعالی د نیکو بندگانو زړونه پاک صاف وي پر هغو که معمولي د گناه ناپاکي ولگیږي نو له زغملو یې پورته وي. نو د حضرت عمر رضي الله تعالی عنه له کیسې څخه هم معلومه شوه چې د انسان پر اخلاقو، کردار او ژوند باندې هم د لباس اثر لویږي ځکه خو لباس معمولي مه گڼئ او نه باید صرف نظر وگرځول شي او په اړه چې یې د شریعت کوم اصول دي باید وفهمول شي او عمل پرې کول هم اړین دی.

په ټویټر کې د خارجیانو تر مینځ د ملا محمد عمر د ځای ځایگي په باب جنجال

۱ - د افغانستان لپاره د ملگرو ملتونو پخوانی استازی لیکي: تر هغه ځایه چې زه بتي دام پېژنم، زه پر هغې باندې تر جنرال پټریس او تر نورو امریکایي منابعو زیات اعتماد لرم، ځکه امریکایان د افغانستان د اوضاع په درکولو کې ناکامه او اوږده سابقه لري .

۲ - د افغانستان د چارو څوانه او وتلې امریکایي لیکواله اشلي جکسن لیکي: آفرین بتي دام! د ملا محمدعمر په اړه ستا هر اړخېز تحقیقات د ویلو وړ دي. زه دېته انتظار باسم چې گرده رپوټ ولولم .

۳ - د اسوشیټډ پریس مشهوره خبریاله کاتي گنان لیکي: زه پدې نه پوهېږم چې ملا محمدعمر چیري مړ سو، خو دا به یوه حیرانونکې خبره نه وي چې هغه په افغانستان کې پاته سوی وي. هغه نه اسامه بن لادن وو او ظواهري  هغه حتی د خپل حاکمیت په دروان کې دوه ځله کابل ته سفر کړ. د هغه لپاره آرام ځای کراچي او یا کوټه نه وه، بلکي یو افغان کلی وو. مهرباني وکړئ، ډېر مه احساساتي کېږي. دا فقط زما نظر دی.

۴ - امریکایي لیکوال ټامس جانس لیکي: زه یو ساده سوال لرم، که چیري ملا عمر د کراچي په یوه روغتون کې مړ سوي وي، د هغه په جسد څه وسول؟ یقینا، پاکستان او ای ایس ای باید پدې برخه کې کره اسناد او شواهد ولري. البته پوښتنه دا ده که چیري داسي شواهد او اسناد موجود وي !

۵ - د نیویارک ټایمز مشهوره خبریاله کارلوتا گال لیکي: زه پر دې رپوټ باندې باور نه لرم. ځکه هلته داسي خلگ سته چې د یو محقق د خوشحاله کولو لپاره هر څه وایي. د هغه دوکاندار طالب کیسه خو به مو په یاد وي !

# پر ځان اعتماد او باور

## به مو بریا ته رسوي

لیکوال: بندي محصل

یو ملت هغه وخت ناکامه کیږی چی پر ځان اعتماد له لاسه ورکړي' خپل تاریخ ته په سپکه وګوري او د بیا پورته کیدو کیلي ورته د بل په لاس کې ښکاره سي.

اوس چي موږ له تیر اسلامي کلتور سره د ماډرنیستانو تعامل وینو' نو داسي ښکاري چې دوی پر اسلامي تمدن د خلکو د بی باوره کولو پروژه لري او اسلامي نرۍ د غرب ړانده مقلدین جوړوي.

مصري مفکر' ډاکټر ابو موسی یو له هغو محدودو کسانو څخه دی چي پر اسلامي ادبیاتو شه پوهیږي، ترې متاثره دی او په هماغو زړو کتابونو کې حل ویني.

هغه وایې مسلمانو ځوانانو ته یې تر ټولو مهمه سپارښتنه دا ده چې هغه څه هیڅکله ونه منې چې پر اسلامي ثقافت یې بې باوره کوي؛ زکه دغه هیڅکله د دوست خبره نه وي بلکې د دوښمن په شاتو کې زهر وي.

خو زموږ ماډرنیستان په اسلامي ثقافت کې د ستونزو حل نه شي لیدلای او غربي ثقافت کې بیا ستونزي . له دغو افکارو متاثر دوستان پر فیسبوک او نورو ځایونو کې پر دیموکراسۍ او نورو غربي ارزښتونو اصلا نیوکه نه شي زغملای ان پر ټرمپ غونډې سري باندي نیوکه هم دوی خواشینې کوي' چې له لیونتوب او اخلاقي تیتوالي یې امریکایان هم انکار نه شي کولای.

ځینې خو یې دومره له حد څخه تیر سوي چې ان د جهالت زمانه هم ورته ګوته په غاش پاته ده' په زړونو' سترګو یې مهرونه او پر غوږونو یې پردې لګول سوي؛ حق ورته باطل او باطل ورته حق ښکاري.

خو بل طرف یو دین' ملت او دله هغه وخت بریا ته رسي تر سو د خپل ریښتینې هدف د تر لاسه کولو لپاره تل پاته او نه ستړیدونکې حوصله او اراده ولري.

د خپل هدف د بریا کیلي د الهی نصرت په ملتیا په خپل لاس کې ولري' پر اسلامي ثقافت هر تیری ورته د هیڅ ډول زغملو نه وي .

د اسلامي ثقافت' اسلامي شریعت او الهی قانون د نافذیت په موخه یې خپل شیرین وجود د حضرت همزه رضی الله تعالی عنه غوندي لاسونه' پښې' غوږونه او شونډان له تن څخه جدا او اینه یې له ځیګر څخه بهر سي هله به خپل ریښتینې هدف ته رسي.

دین او ملت به بریا ته رسوي.

لیکنه: ابو مدثر مطمئن

# راځئ چې عبادت وپېژنو!

عبادت د ژوند هدف اودانسان دتخلیق اساسي موخه ده،داسلام دسپیڅلي نظام په رڼا کې دعبادت مفهوم دنورو ادیانو په پرتله جلا حیثیت لري.

په نصرانیت،یهودیت،هندوئیزم او بودائیزم کې عبادت یوازې دعبادت خانې تر محدودې پورې اړوند،اود یو څو رسوماتو مجموعه وي،مگر په اسلام کې ټول ژوند'له سره تر نوکه او له زانگو نه تر لحده،له انفرادي ژوند نه نیولې تر ټولنیز ژوند پورې ټولو اړخونو ته لکه کورنی ژوند،اقتصاد، سیاست،ښوونه او روزنه جنگ اوسوله،محاکم او نړیوالو اړیکو ته شامل دی .

داچې الله تعالی مونږ ټول انسان اوپیریان عبث او بې گټې نه یو پیداکړي بلکې الله تعالی مونږ دخپل عبادت اوبندگۍ لپاره پیداکړي یو لکه څرنگه چې الله تعالی فرمایلي دي ((وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ))ژباړه:ما پیریان او انسانان له دې پرته چې زما بندگي وکړي د بل څه کار لپاره ندي پیدا کړي.

داخو معلومه شوه چې الله تعالی مونږ دخپل عبادت اوبندگۍ لپاره پیداکړي یو،نوداچې دالله تعالی عبادت اوبندگي په ښه شان سره تر سره کړو نو لازمه ده چې عبادت وپیژنو چې عبادت څه شي دی؟ او کومو شیانو ته شاملیږي؟.

دعبادت کلمه له(عبد)څخه اخستل شوې عبد په عربي ژبه کې بنده ته ویل کیږي اوبنده هغه دی چې دبل چا په بهترۍ او غوره والي اعتراف کوي دخپلې ازادۍ او استقلال احساس ورسره نه وي،دخپل بادار په وړاندې له هر ډول مقاومت څخه ډډه کوي،دهغه له اوامرو،او احکامو څخه سرغړونه نه کوي،دهغه پر وړاندې په پوره ډول تسلیم وي،اوخبره یې مني،هغه ته وفادار وي او ادب یې کوي.

یا په بل عبارت سره عبادت:له هغه ډول انتهاي زارۍ،عاجزۍ،امر منلو او ذلت څخه عبارت دی چې دالله تعالی اودهغه درسول سره دمحبت په اساس تر سره شي.

عبادت دریو معانیو ته شاملیږي:

۱-دخپل رب ټول اوامر اوحکمونه درسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه ترسره کول.

۲-دژوند ټولې چارې دالله تعالی درضا په خاطر تر سره کول.

۳-دالله تعالی ټول اوامر اوحکمونه دزړه په مینه ترسره کول،مطلب داچې بوج اوبار ونه گڼل شي او نفسي غوښتني دالله تعالی ددین تابع وگرځول شي،دخپلو خپلوانو ناروا غوښتنو ته دالله تعالی اودهغه درسول پر احکامو ترجیح ورنکړای شي.

همدارنگه ابن تېمیه (رح) وايي داسلام په دین کې عبادت یو جامع نوم ټولو هغو چارو ته شاملیږي چې دالله تعالی درضا اوخوښۍ سبب گرځي،او یومسلمان یې پخپل روز مره ژوند کې ترسره کوي.

نو پورته تعریفونو ته په کتلو سره ویلای شوچې عبادت یوازې کلمې طیبي،لمونځ،روژې،زکات اوحج ته نه ویل کیږي،که څه هم داسلام اساسي ارکان ګڼل کیږي اوپه اسلام کې ستر مقام اومنزلت لري خو ټول دین اوبشپړ عبادت نه دی،بلکې عبادت دژوند ټولو چارو ته شاملیږي،لکه اخلاق،اداب،معاملات ټولنیزې چارې،کورنی نظام،قانون جوړونه.....

نو پدې اساس ویلای شو چې په ټولنه کې هر ډول نېکي او دبندګانو سره مرسته کول عبادت دي:دمثال په توګه دیتیم اوښکې پاکول،له غمجنو غم پورته کول،داړمن اړتیا پوره کول،دمظلوم مرسته کول'دمغلوب راپورته کول،دقرضدار قرض ادا کول،دعیال دار لاس نیوی کول،ناپوه انسان ته ښوونه،مسافرو ته ځای ورکول،دالله تعالی له مخلوقاتو شر پورته کول،دلارې څخه دضررناک شي لرې کول،ددو مسلمانانو ترمنځ سوله کول،درنځور عیادت کول،اوداسې نورې نېکې چارې غوره عبادات دي دالله تعالی دقرب او نزدېکت باعث ګرځي خو چې نیت په کې خالص دالله تعالی رضا وي.

نو هرهغه څوک چې ځان مسلمان ګڼي او پر الله تعالی ایمان ولري نو د خپل ژوندانه ټول کارونه دالله تعالی احکامو اوامرو په اساس ترسره کړي او کله چې دالله تعالی امر ورته متوجې شي نو ووایې چې( سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ) موږ حکم واورېدی او اطاعت مو ومانه.

د مومن اوکافر ترمنځ توپیر دادی چې مومن یوازې د یو رب بنده وي دخپلو نفسي غوښتنو تابع نه وي،بلکې دهماغه ژمنې اوتعهد پابند وي چې دخپل رب سره یې دتوحید کلمې په اقرار سره ترسره کړې ده او بالعکس کافر بیا دغه ځانګړتیاوې نه لري،کافر دنفس تابع وي او د شیطان بندګي کوي.

# محب خېل ؛ له امریکا سره په دې نده ورانه چې ولې .....!!

منیب

یوه نکته باید واضحه شي چې محب خېلو له امریکا سره په دې نده ورانه چې ولې ړندې بمبارۍ کوئ، جوماتونه شهیدانوئ، په نیمو شپو زموږ بېګناه افغانانو په کورو ننوځئ، د ښځو مخکې یې خاوند او بچیان وژنئ او بیا وتلو وخت کې په سور ژمي کې یې خټین کورونه په بمونو الوزوئ او په خپله مخه ځئ.

د دوی ټول خفګان او ګیله په دې ده چې دوی ورته وایي پاتې شئ، عسکر مه وباسئ، موږ درته جګړه کوو د امریکا او سیمې لپاره ټروریزم لومړۍ کرښه کې درته خپل عسکر قربانوو ...

خو هغوی وایي چې نه نور بس دی موږ #سوله کوو خپلو کورو ته ځو.

هغه ملګري چې د ارګ وروستی دریځ د ملي نوامیسو او افغاني غرور مظهر بولي قسم ورکړئ چې اختلاف له دې پرته په بل څه شي دی؟

همدا نن که دا خلک ریښتیا د ملي او افغاني ګټو لپاره ودرېږي او سولې ته پر جنګ ترجیح ورکړي له پروني ټول اختلافه ور تېر؛ ټنډې یې ښکلوم.

باور وکړئ د ټامي لفظ په کارېدو بېرته له زړه خفه شم.

اخر زړه ودردېږي چې یو څوک ولې د واک او دبدبې دومره حریص شي چې خپله خوښي د نورو انسانانو په وژنه او ماشومانو په قتلېدو کې وغواړي.

له دې حالته باید و وځو.

## د علم دنګ منار شيخ الحديث

# مولانا سراج الدين تارکي

مفتي محمد ګل سعيد

مضت الدهـــور وما اتين بمثـله
ولقد اتى فعـــجزن عـــــن نظرائه

دازمـــوږ لپـــاره لـــوی افتخـــار دی چـــې دامـــام ابـــوداؤد سجسـتاني، ملاعلـي قـاري هـروي ،خواجـه عبداللـه انصـاري هـروي ، قتيبـه بـن سـعيد بغلانـي، ابـن حبـان بسـتي ، علامـه خطـــابي او ابونصـــر ســـجزي پـــه څيرمحـــدثينواونوميالیو شخصيتونو زموږ په خاوره کې سرونه راپورته کړي دي . تېر خـو پربـړده ، چـې پـه همـدې معاصـر پېـر کـې هـم داسـې عالمان لرو چې زمـوږ دهيواد شـمله پـرې هسـکه ده . دااللـه تعالى پراخه دنيا په همدغوعالمانوآباده ده، اوددوی له دې فاني دنيا کـوچ يونـه جبرانيـدونکی نقصـان دی. اللـه تعـالى فرمـايي: افلايرون انانأتى الارض ننقصهامن اطرافهاافهم الغالبون. ژباړه : آيا دوی نه ويني چې موږ لـه هـرې خواځمکـه راکمـوو؟ نوآيـا دوی غالب کيدونکي دي؟ ابن عباس رضى الله عنه ويلي دي : خرابهـــابموت الفقهـــاء وعلمائهاواهـــل الخيرمنها،وکـــذاقال مجاهدايضــا: هومـوت العلمـاء . رئـيس المفسـرين حضـرت عبداللـه بـن عبـاس رضـی اللـه عنهمـااولوی مفسرحضـرت مجاهدرحمـه اللـه وايـی: دا چـې اللـه تعـالى وايـی ځمکـه راکموومراديی دځمکې خرابيدل دي په وفات دفقهـاء اوعلمـاء ســره، ځکــه چــې علمــاء لــه ځمکــې وکــوچيږي نوجهــل اوفســادخپريږي. همدارنګـه پـه مشـکوة شـريف کـې حـديث شريف دی:

(ان الله لايقـبض العلـم انتزاعاينتزعـه مـن صـدورالناس، ولکن يقبض العلم بقبض العلماء حتى اذالم يترک عالمـا اتخـذ الناس رؤوسا جهالا، فسئلوفأفتوا بغيـرعلم فضلواوأضـلو.ژباړه: بـې شـکه اللـه تعـالى علـم پـه داسـې ډول نـه قـبض کـوي چـې دخلکولـه سـينويي وباسـي، بلکـه علـم قـبض کـوي پـه وفـات اومړينې دعلماؤ سره، تردې چې الله تعالى يوعالم هم په ځمکه پرينږدي ، نوخلک به جاهلان خپل مشران مقررکړي ، نـودوی به له هغوپوښتنې کوي اوهغه به پرته له علمه فتواوې ورکـوي ، نوهغه به هم پخپله ګمراه شي اوهم به نورخلک ګمراه کړي. پـه ذکرشوي آيت کې ثابته شوه ،چې دعلماؤ کراموافقهاء کرامـو وفـات پـه حقيقـت کـې دځمکـې اونـړی لپـاره نقصـان او نړيدل دي. دغـه راز پـه نبـوي حـديث کـې هـم دامـت دعلمـاؤ رحلـت دعمـومي ګمراهـی اوضـلالت مقدمـه بلـل شـوې ده. دامت دعلماء کراموپه مړينه چې وخت په وخت دامت پوهـان کوم تاثرات وړاندې کوي،له هغو څخـه هـم څرګنـديږي ، چـې ديـوه عـالم وفـات پـه حقيقـت کـې څـومره لـوی زيـان دی؟ حضرت امام حسـن رضـی اللـه عنـه فرمـايي: دعـالم وفـات پـه اسلام کې ديوه لوی شګاف (چاود)مثال لـري ،چـې ترڅـو ورڅ اوشپه راځي هيڅ شی به يی هم جبيره نـه کـړای شـي. حضـرت امام احمدبن حنبل رحمه الله بيا دعلم دمنزلت په اړه فرمـايي : النا س احوج الى العلم منهم الى الطعام والشراب لان الطعـام والشراب يحتاج اليه فى اليوم مرتين اوثلاثا والعلم يحتـاج اليـه فـی کـل وقـت. خلـک لـه ډوډی اوڅښـاک څخـه علـم تـه ډيرمحتاج دي، ځکه ډوډی ته خو بـه پـه ورځ کـې دوه يـادرې کرته ضرورت محسوسوي خوعلم تـه دژونـدپـه هـره شـيبه کـې محتـاج دي. لـه لوړوضـاحت څخـه څرګنـده شـوه ، چـې ديـوه

ريښتني ديني عـالم اوفقهي رهنمارحلت دولس لپاره خورا دروندغم بلل کيږي. سږکال دمخوروعلماء کراموپرله پسې مړينې وې،چې دايمـان اوعلـم دخاوندانو زړونه يې سخت ودردول .

شهيدشيخ الحديث مولاناسميع الحق ، شيخ الحديث مولاناحمدالله جان(ډاګی مولانا ) صيب ،شيخ الحديث مولانا امان الله حقاني دلکي مروت، شيخ الحديث مولانامحمديوسف صديقي (رحمهم الله) او... سږکال له دې فاني نړۍ څخه وکوچيدل. په دې ليکنه کې دعلم اوعرفان دلوی غرشيخ الحديث مولوی سراج الدين تارکي صاحب د ژونداو کارنامو په اړه درسره لنډمعلومات شريکوم، هيله ده چې راسره ويي لولې.

**زوکړه:** شيخ الحديث مولناسراج الدين په ختې احسان خيل ساپی دکونړ ولايت داسعداباد ولسوالۍ دننګلام کلي په يوه عالمه اوفاضله کورنۍ کې په ۱۹۴۵ ميلادي کال کې زيږيدلی دی . پلار يې مولوی احمدګل نوميده چې دميرافضل زوی دمير زمان لمسی اود محمداکرام کړوسی دی. دشيخ صاحب اکا مولوی محمودنوميده چې په ننګلام مولوی صاحب يې شهرت درلوداودخپل وخت لوی ديني عالم ؤ، دديوبندله مدرسې نه فارغ شوی ؤاو د ننګلام کلي کې يې لويه ديني مدرسه جوړه کړې وه او په سوونوطالبانوبه ترينه زده کړې کولې.

**زده کړې:** حضرت شيخ صاحب ابتدايي زده کړې په تيراکې وکړې اودهغه ځای له عالمانونه يې استفاده کړې ده. منځنۍزده کړې يې د کوزتهکال په رحمانيه مدرسه کې له شيخ الحديث مولينا بهرمندصاحب څخه وکړې . وړه دوره اولويه دوره اوپاتې فنون يې دپيښور په دارالعلوم اشرفيه کې له شيخ الحديث مولينامعزالحق (چې په پاچاملوی صاحب باندې مشهور او دديوبندله مدرسې فارغ شوی ؤ)، اود هغه له ورور حاجی مولوی صاحب زين العابدين چې هغه هم دديوبندمدرسې نه فارغ شوی ؤ، اودچکيسر له مولوی حسن االابرار صاحب اومولوی غضنفرصاحب څخه ولوستل. په ۱۳۸۹ ق کال فارغ شو، دفضيلت پګړی يې وتړله اوديوه تکړه مدرس اونوميالي عالم په توګه وپيژندل شو.

**تدريس :** شيخ صاحب له فراغت نه وروسته پنځه کاله دپيښورپه نوتيه کې دريئس نورمحمدپه مدرسه کې تدريس وکړ. دوه کاله يې دسپين جومات په نعمانيه مدرسه کې دديني علوموپه تدريس کړل، په ۱۹۸۹ م کال دتالاب جومات مدرسې ته لاړاودوه کاله يې په دارالعلوم تالاب جومات کې تدريس وکړ. په ۱۹۹۱م کال دسپين جومات نعمانيې مدرسې ته لاړاو هلته يې هم دوه کاله تدريس وکړ. په ۱۹۹۳ م /۱۴۰۱ه ق کال کې د پيښور د نمکمنډۍ مرکزي دارالقراء مدرسې ته وغوښتل شو اوترمرګه پورې يې هلته داحاديثوپه زړه پورې درس وکړ. اووه ديرش کاله يې دوړې دورې تدريس وکړ . څه موده يې لويه دوره هم درس کړه، په دې هکله به نوموړي فرمايل : څه موده مې لويه دوره تدريس کړه ، بيامې فکر وکړچې په وړه دوره کې علوم زيات دي نوځکه مې دلويې دورې تدريس پريښوداوله هغه نه وروسته مې دوړې دورې تدريس ته ملاوتړله . يوځل مې داقصه خپل محترم استاذ پاچامولوی صاحب ته وکړه او ورته ومې ويل: چې جناب ! مابيرته دوړې دورې تدريس پيل کړ اولويه دوره مې پريښوده نوهغه مرحوم راته وفرمايل: اوس دې درې ګټې وکړې يوه داچې دوړې دورې طالبان زيات وي اودلويې دورې دشاګردانو تعدادکم وي نو زيات شميرشاګردان به درڅخه استفاده وکړي، دوهم داچې په وړه دوره کې مختلف علوم (فقه ، تفسير، اصول التفسير، اصول الحديث او احاديث) تدريس کيږي اوپه لويه دوره کې يواځې داحاديثو تدريس وي ، نودمختلفوعلوموپه تدريس کې زياته ګټه وي. دريم داچې مشکوة شريف داحاديثوفتاوی ده له تانه احاديث هم پاتې نه دي. نوله هغې ورځې نه را په دې خوا هرکال په وړه دوره کې راسره له دريوسوڅخه زيات طالبان وي.

شيخ صاحب له يوه پلوه درويش، عابد او زاهد شخص ؤ، خو ورسره نوميالی عالم او محقق هم عالم هم ؤ، پر خپلو افغاني رواياتو، زهد او تقوا، ښو اخلاقو، تواضع او علمي پلټنو سخت ولاړ ؤ، مجلس يې خو ږ او پراخ ؤ، د خپلو تېرو صالحينو د علم او عمل ښه نمونه بلل کيده، مرشدانه شفقت ، محبت او مهرباني يې درلوده ، او يو شمېر شاګردان يې وروزل چې په حقيقت کې د ده علمي ترکه ګڼل کيږي . شيخ صاحب داسلافو نمونه وه، صورت اوسيرت

یی په شریعت برابرۇ، باطن یی تر ظاهرغوره ښکاریده ، بی ریا اومخلص انسان ؤ. بایدووایم چې که دشیخ صاحب په څیر ډیرخلک موږ درلودلای ، نودنیا ته مو دصحابه کرامو پشان په زغرده دااعلان کاوه ، چې: کونوا مثلنا .... یعنې دا زموږ پشان شئ، داقول به صحابه کرامودنیاوالوته کاوه .

شیخ صیب پیاوړی عالم ؤ. علمي استعدادیي دومره قوي ؤ، چې کله به دیوې مسئلې ذکر وشو یابه دکوم حدیث شریف پوښتنه وشوه ، نوده به دکتاب له ذکرسره دهغه حواله ورکړه، په فقهي مسائلوکې ډیرمحتاط ؤ، همیشه یې په معتبروکتابونوحواله ورکوله، داخلاقواوتواضع نمونه ؤ، دخوشطبعی یوځانګړی مزاج یي درلودچې هیڅوک نه ورسره تنګیدل. شیخ صیب ته الله تعالی خورابنه اخلاق اوسترعلمي استعدادورکړی ؤ، چې کله به چاترینه ددعاغوښتنه وکړه نوډیره جامع اواوږده دعابه یې ورته کوله . شیخ الحدیث مولیناسراج الدین تارکي چې دعمر زیاته برخه یې داحادیثو،فقهې اوتفسیرپه تدریس کې تیره کړې ده ، دبشرحافي ،ابن جریر طبري ، اوابن تیمیه الحراني په څیر یې دعلم سره دزیاتې مینې له امله ترپایه ازدواجي زندګي پرینښوده، دنیااومافیهاییی ترک کړل اوشپه او ورځ یی دکتابونومطالعې ، درس او تدریس ته ځان وقف کړی ؤ او په زرګونو شاګردان یی جامعې ته روزلي ترشاه پرینبودل. شیخ عبدالفتاح ابوغدة رحمه الله د خپل کتاب (العلماء العزاب الذین اثرواالعلم علی الزواج) په لړلیک کې دهغوعالمانونومونه راوړي دي چې هغوی دتجردزندګي غوره کړې وه اوځانونه یی دعلم دخپرولو لپاره فارغ کړي وو.

جناب شیخ صاحب دهماغوعالمانوتاریخ راژوندی کړ اوځان یي په بشپړه توګه د علم زده کړې ، ښوونې او تدریس ته وقف کړی ؤ. زما ګران استاذ اروانباد شیخ الحدیث مولانا سراج الدین هم د العلماء العزاب په ټولګي کې شماردی، ځکه چې د علم سره د زیاتې مینې له امله یې نکاح ترک کړې او واده یې نه ؤ کړی . شیخ عبد الفتاح ابو غده دخپل کتاب العلماء العزاب الذین اثرواالعلم علی الزواج ۱۲۳مخ کې دابوالوفاء افغاني په ژوندلیک کې کاږي: وعاش عزبًا فریدًا متبتلاً متعبدًا زاهدًا ورعًا قائم اللیل محافظًا علی السنن النبویة کلَّ الحفاظ یکره ترک المستحبات ویعمر اوقاته بالمطالعة والافادة والتحقیق والتعلیق وتلقین العلم لشباب العلماء والمستفیدین یقول کلمة الحق ولایخاف فی الله لومة لائم .

**دژباړې خلاصه:**«مولوی صاحب په تجرد او انزوا، زهداوتقوی کې ژوندتیرکړ،دشپې به یې دالله تعالی عبادت کاوه ،دنبوی سنتوپابندؤ،مستحبات یی هم نه پرینښودل ،ټول وخت یی په مطالعه ،افاده،تحقیق ،تعلیق اوځوان کهول ته په ښوونه اواستفاده کې تیراوه،همیشه به یی حق وایه اوپه حق ویلوکې دملامتي ویونکي له ملامتیا نه ویریده.» زه ددې کرښو لیکوال ځان مجازګڼم اودابوالوفاء افغاني(رحمة الله علیه) په حق کې ذکر شوي ګرد اوصاف دخپل شیخ په ژوندلیک کې راوړم اوزما په اندهمدا صفات کاملازمادپه شیخ کې هم موجودؤ،که ابوغدة رحمة الله علیه ژوندی وای او شیخ صیب یي لیدلی وای نوبه یی همدا اوصاف کټ مټ دده (رحمة الله علیه) په حق کې هم راوړي وای.

شیخ صیب زبده مدرس ؤ اوهروخت به په تدریس اودخلکوپه ارشادبوخت و. منزوي اوپه ګوښه کې ناست سړی و. علمي اوروحاني استغناء دی له دنیوي جولانه منع کاوه اوهمیشه دخپلوشاګردانواومخلصانودمجلس څراغ و. دتدریس حلقه یی دشاهانوتر دربار اوعزت خوښه وه ؛ نوځکه تل دتدریس اوارشادپه حلقه کې له دنیوي مزخرفاتوڅخه فارغ اومستغني و او له دیني تعلم اوتعلیم پرته بل هیڅ دنیوي مصروفیت نه یي درلود .

شیخ صاحب په اسلامې تاریخ کې دلوی نوم خاوند، او زموږ د هیوادد هغواسلافونعم البدل دی،چې نړی یې له خپل علمي سمندرنه سیرابه کړې ده. نوموړی په تفسیر کې دامام سیوطي دافکارو خزانه او دظهیرالدین عبدالرشیدولوالجي بدخشاني مثیل، په احادیثوکې دامام بخاري لوی نائب، دفقهې په احکاموکې دحضرت ابوحنیفه رحمه الله دافکارو مترجم، دمذهب په حصه کې دمقابل سره یوسترمارشال اودفلسفة الاحکام والمواعظ دبیانولودحلقې دویم مولانارومي بلخي ،په سخاکې دوخت حاتم طایی اوپه دیني علوموکې هغه شخصیت دی چې شیوخ الاحادیث یې په شاګردی باندې ویاړکوي. دشیخ صیب له اخلاص نه ډک تدریس اودا دتنهایي ژوند چې سره پرتله کړای شي نو دعبدالله بن مسعودرضی الله عنه هغه تاریخي وصیتونه چې خپلوملګروته یې کړي ؤ، دانسان

ذهن ته راشي . ده به خپلوملګروته ویل :کونواینابیع العلم ، مصابیح الهدی ،احلاس البیوت ،سرج اللیل ،جددالقلوب ، خلقان الثیاب ، تعرفون فی اهل السماء وتخفون فی اهل الارض . ژباړه: وګرځئ دعلم چینې ، دهدایت څراغونه، دخپل کورسره ملازمین (لکه فرش چې همیشه په کورکې غوړیدلی وي) وګرځئ ، لکه دشپې مشالونه چې زړونه مونوي (ژوندي وي) اوجامې مو زړې وي ، داهل السمان ترمنځ پیژندل شوي اوداهل الارض ترمینځ غرباء اونااشنااوسئ.

واقعاچې شیخ صیب مرحوم هم همداسې ژوندتیرکړ. هغه دعلم چینه وه اودهدایت څراغ ؤ،نه خویې له دنیاسره زړه وتاړه اونه یې هم دځمکې په مخ دشهرت اوعشرت تمناوکړه . هغه دهغو کسانوله ډلې څخه ؤ چې یوازې دالله تعالی په نزد مقبولیت یې دځان لپاره کافي ګاڼه.

**خاطره:** زه (ددې کرښـولیکوال) د۲۰۱۷ میلادي کال دجنوري دمیاشتې په (۲) مه دخپل استادشیخ الحدیث مولاناسراج الدین بیمارپرسی لپاره دنمکمنډې مرکزي مدرسې ته ورغلم .له ده مرحوم سره مې لیده کاته وشول اودعبرت اونصیحت نه ډک مجلس یې وکړ . هغه خوند چې دده په مجلس کې مالیدلی دی تراوسه مې دبل چاپه مجلس کې پیدانکړ. مجلس یې یوازې دعلم اوتدریس په مناسبت ؤ،ترپایه یې په مجلس کې یوه دنیاوي خبره ونشوه. دروندمجلس به یې کاؤه اوله رعب نه ډکه څېره الله تعالی ورکړې وه. له هرچاسره یې ښه اخلاق اوله شفقت نه ډک چلندکاوه. دی دښه خوی، نرم طبیعت ، رسافکر اوفصیح نطق خاوندؤ، خوږې ژبې ، وریـن تنـدي اوښـکلیواخلاقویی دانسانانوپه زړونوکې محبوبیت پیداکړی ؤ. په عوامو کې یې شهرت نه درلوداونه یې شهرت خوښا وه. دمجلس په پای کې مې ترینه دده دژوندپه هکله یوڅوپوښتنې وکړې اوددې پوښتنوپه لړکې مې ترینه داپوښتنه هم وکړه،چې جناب شیخ صاحب په ټولوفنونوکې دې له کوم فن سره زیاته علاقه ده ؟

ده (رحمة الله علیه ) ځواب راکړ: « معاني ښه علم دی اوزماخوښ دی ځکه چې دقران عظیم الشان ښه خدمت یې کړی دی. دټولوفنونو ویل او زده کول کول په کاردي ، ځکه چې ګردفنون ګټوردي اودطالب استعدادپرې قوي کیږي . دوفاق المدارس مشرانوخوفنون وران کړل ، چې کوم سخت اواهم کتابونه ؤاودطالب استعداد پرې پیاوړی کیده ، هغه ټول یې له نصاب څخه ایستلي دي . دعلماؤ لپاره تدریس زماپه نظر ډیر ضروري ده ځکه چې په تدریس سړی ملاکیږي . وړه دوره په دې وجه مشکله ده چې هدایې اوبیضاوي دتیرو چیچل دي، داحادیثوعلم خونرم علم دی. زمادوړې دورې دتدریس تقریباڅلویښت کاله کیږي خواوس هم هرکال زه دوړې دورې دکتابونو مطالعه په دقت سره کوم . په عامو کتابونو کې تهذیب الکمال ښکلی اوجامع کتاب ده .کتاب الکمال عبدالغنی مقدسي لیکلی ده بیا پرې امام مزی چې دمقدسي زوم کیده تفصیل ولیکه اونوم یې پرې تهذیب الکمال کیښود .ابن حجررحمه الله چې ډیر لوی عالم ؤ، ښه فکریې درلود نوتهذیب الکمال یی راکم کړ او تهذیب التهذیب یې په څلوروجلدونوکې ولیکه . ماته شهرت خوندنه راکوي،داښه ده چې څوک موپاڼره نه اړوي . په احادیثوکې راغلي دي چې څوک وفات شي اودژړاپرې څوک نه وي ددې سړي درجې لوړیږي .«

دشیخ صیب دخولې خبره ده ،چې « یوه ورځ مې دقصه خوانی بازارکې د عبدالفتاح ابوغدة (رحمه الله) دالعلماء العزاب الذین آثرواالعلم علی الزواج په نامه کتاب اخیسته ،نو دمکتبې مالک راته وویل:چې داکتاب څه کوې؟ ماورته وویل: چې زه هم ددغوملګری یم ، نودکتابخانې مالک راته دغه کتاب بلاعوضه راکړ اوروپۍ یې راڅخه وانه خیستې». یوځل یی طالبانوته دعلم دزده کړې ، ښوونې اوعلمي شغل په هکله نصیحت کاوه ، نویې په همدې نصیحت کې دعلم سره دشوق ساتلواومینې په اړونددا قصه هم وکړه ،چې یوه ورځ ابو نصر سجزي رحمه الله ته یوه ښځه راغله له خپل جیب نه یې بټوه را اوویسته چې په کې زر دیناره ؤو او د ابو نصر سجزي په مخ کې یې کیښوده اوبیا یې ورته وویل چې دا واخله او خرڅ یې کړه؛ ابو نصر ورته وویل : دڅه لپاره ؟ ښځې ورته وویل : ما واده کړه چې ستا خدمت وکړم ابونصر ورته وویل : خپله بټوه دی بیرته واخله اولاړه شه کله چې ښځه لاړه نو ابونصر سجزي وویل :زه له سجستان نه دعلم دزده کړې په نیت راوتلی یم که مې واده وکړ نو بیا به دا نوم رانه لرې شي. زه دعلم دزده کړې تر ثوابه یوشی هم غوره نشم ګڼلی.

**مړینه:** شیخ صیب د۷۴کلونو په عمر د۲۰۱۹م کال دجنوري په ۳۰مه دچهارشنبې په ورځ وفات شو او د صوابي دګندف کیمپ په هدیره کې دخپل وروړترڅنګ خاورته وسپارل شو.جنازه لمونځ یي استادالقراء قاري فیاض الرحمن علوي په امامت اداکړی شو. دجنازې لمونځ یي دپیښور ښار په وزیرباغ کې په داسې حال کې اداکړی شو، چې بې شمیره عواماوخواصویي په جنازه کې ګډون کړی ؤ. دجنازې تراداکولومخکې مولوي عزیز الرحمن صاحب په خپل بیان کې وویل: زما استاد قاضي محمد امین(رحمه الله) یوه ورځ راته وویل :چې عالمان په دې حدیث "موتُ العالِم موتُ العالَم" باندې پوهېږي، خو زه یې داسې توجیه کووم "العالِم" او العالَم" دواړو کې الف لام عهدي دی. معنا دا شوه، چې د هر عالِم په مرګ نړۍ نه مري، بلکې د معهودعالِم( چې ددین ستر داعي اومدرس وي) په مړینه باندې نړۍ مري او د عالِم په مرګ هره نړۍ هم نه مري، بلکه د علم نړۍ پرې مري. همدارنګه د نمکمنډۍ دمدرسې مهتمم (قاري فیاض الرحمن علوي) هم په خپل تقریرکې وفرمایل: شیخ صیب له تېرو څلوېښتو کلونو راهیسې موږ سره مدرس و. دې دوران کې ډېرو مهتممینو کوښښ وکړ، چې دوی یې په خپلومدارسوکې ځان سره مدرس وټاکي، خو هېڅوک ونه توانېدل. شیخ سراج الدین واده نه ؤکړی، خو له کتابه پرته یې بل شي سره علاقه هم نه وه. هر وخت به له کتاب سره ګوښه و. زما یو استاد و. په کابل استاد یې شهرت درلود. ما ترې ابو داود ویلی و، هغه هم کټ مټ لکه شیخ سراج الدین، ټول عمر یي له کتاب سره تېر کړ. په خپل ژوند کې مې شیخ سراج الدین دوهم سړی ولید، چې یوازې د علم لپاره یې ځان وقف کړی ؤ. د نمکمنډۍ بازار د ده په مخ کې ابادشو، مګر یوه ورځ مو یوه شېبه د چا په دوکان کې ونه لید. اونه مو یوه ورځ د چا په دروازه کې و لید.له مدرسې، جومات او کتاب سره یې ژوند تړلی ؤ. یو وخت مفتي اسلم صاحب له برتانیې څخه راغلی و. زموږ مدرسې ته هم راغی. شیخ سراج الدین هدایه درسوله، مفتي اسلم صاحب ورته کېناست. کله چې درس خلاص شو، راته یې وویل: زه خو د دې سړي عبور ته حیران شوم، دا خو سم امام ابو حنیفه دی! قاري فیاض د وینا اخر کې وویل:داسې زمانه ده، چې د عادي تعلیم یافته انسان معاش په کې تر لکونو رسېدلی، خو زموږ علمي متبحرین لا هم پر( ۸۰۰۰) کلدارو اکتفاء کوي. د مال زمانه کې، مال سره دومره بې تعلقي د ولایت مرتبه نه ده؟

شیخ صیب درې وروڼه درلودل. مشر ورور یې رحمت ګل ، دویم یې اسرارالدین او دریم یې محمدنور نومېږي. الله تعالی ته خواست کووچې دده برکات یې په شاګردانوکیږدي اودعلم خیردې یې الله تعالی همداسې جاري ولري.امین یارب العالمین.

لنډه داچې دجناب شیخ صیب دژوند ، سخا، علم، پوهې، ځیرکتیا او علمي خدماتو په اړه که هرڅومره زیاته لیکنه وشي بیایې هم حق نشي اداکیدلی. علامه تفتازاني رحمه الله وایي:

لایدرک الواصف المطری خصایصه
واین یک سابـــقا فی کل ماوصـــفا





# دکابل چارواکي

## هم ځان سپکوي هم ولس

م شفيق

د ملي وحدت په نامه جوړ شوي اداره له پيله ناکام شرميدلياو د خلکود مسايلو د حل پر ځای د ملت پر اوږو بوج ؤ، خو په دې وروستيو کې يې چې د سولې پر خلاف کوم دريځ غوره کړی او په کوم ډول چې اشرف غني او ډله يې د هېواد وقار او عزت د خپلو کرسيو او واک د دوام لپاره په داو کوي د داسې جفا لړ ساری ليدل کېږي.

په داسې حال کې چې د دغه حکومت موده دجان کيږي په قانون تر دوو مياشتو او څو ورځو زياته نه ده پاتې، اوس يې په ډېر ناوړه ډول په گومارنو لاس پورې کړی چې وروستی ساری يې د بلخ د امنيه قوماندان بدلول وو ښه مثال وو.

د بلخ تر پېښې هم ډېره سپکه پېښه امريکا ته د ملي امنيت د سلاکار حمدالله محب سفر ؤ، د سفر موخه يوازې پر دې را څرخېده چې د خليلزاد او طالبانو تر منځ د سولې روان بهير شنډ کړي. محب چې امريکايي چارواکيو ته له طالبانو سره د سولې په باب کوم مثال او منطق وکاروواه ډېر د شرم وړ ؤ. نوموړي وويل چې که امريکا له طالبانو سره سوله کوي د سپتمبر د ۱۱ مې د قربانيانو سپکاوی کوي. کوم افغان به دومره ذليل شي چې د تېرو ۱۸ کلونو په اوږدو کې د سلگونو زره افغانانو قرباني هېڅ وبولي، د ورځې تر دوه سوه افغانانو چې وژل کېږي د هغو دې هېڅ پروا و نه لري، خو د پرديو پوځونو د وحشت د دوام لپاره دې داسې استدلال وکړي چې گواکي سوله مو د سپتمبر د ۱۱ مې د قربانيانو سپکاوی دی.

حمدالله محب په کوم منطق دغه خبره کوي؟

د سپتمبر په ۱۱مه کې د افغان ولس گناه څه ده چې له تېرو ۱۸ کلونو راهيسې وژل کېږي، د سپتمبر د ۱۱ مې په بريدگرو کې يو افغان هم نه ؤ. افغانان د دې راندہ کسات له وحشتونو يوازې په همدې ژغول کېدای شي چې له طالبانو سره سوله وشي او افغانان ټول بېرته پر يوه ټغر را ټول شي.

واقعيت دا دی چې ارگ نن د حمدالله محب په څېر له نيمه افغانانو نه ډک دی، په جگړه کې هره ورځ افغانان وژل کېږي خو د واک او څواک خرمستۍ هغه کسان کوي چې کورنۍ او د وژوند هست او بود يې ټول په بهر کې دي.

ډېره د شرم خبره ده چې دې پردي پالحکومت په لومړي ورځ امريکا ته د افغان ولس د وژلو او ځپلو رسمي سند ورکړ، اوس چې امريکا په هر دليل غواړي چې د وحشتونو د دوام پر ځای د سولې لاره غوره کړي، د غني حکومت په نتواتو سر دی چې وحشتونو ته دوام ورکړئ ځکه چې په وحشتونو کې د دوی گټې خوندي دي. محب چې د خليلزاد پر خلاف د خبرو په غبرگون کې د امريکا د بهرنيو چارو وزارت يوه ټيټ پوړي مامور احضار کړ، دا يې بله سپکه ده، چې بايد حساب ورسره وشي. ځکه چې د افغان ولس سپکاوی وشو، چې د اشرف غني اردليان به نور څومره گل وکړي او ولس به مو نور څومره له مصيبتونو سره لاس او گرېوان کړي. الله دې ولس ته خير پېښ کړي.

# امریکا پر دې لویدلې اداره څه حساب کولای شي؟

د کابل رژيم دسولې د عالي شورا د دارالانشا رييس محمد عمر داودزی په قطر کې د امريکا او طالبانو د خبرو په بهير اندېښنه ښيي، وايي چې عجيبه ده امريکا امنيتي تړون له حکومت سره لاسليکوي، خو د وتلو خبره او له افغانستان نه د بريد نه کولو تضمين له يوې ډلې (طالبانو) غواړي!

داودزی په دې نزاکتونو تر هر چا ښه پوهېږي چې امريکا ولې داسې کوي، پخوا تر دې چې له امريکا وپوښتو چې ولې داسې کوي، له هغو ښاغليو په تېره له دوه سره حکومته بايد وپوښتل شي چې له امريکا سره مو ولې داسې تړون لاسليک کړی چې نه د امريکا در باندې باور شته او نه دربانديې حساب کوي.

پنځه کاله وړاندې امريکا يوه داسې سند ته اړتيا درلوده چې په افغانستان کې وحشتونو ته دوام ورکړای شي خو اعتراض پرې و نه شي. مخه يې څوک و نه نيولای شي، د دې له پاره لومړی همدغسې يو گوډوله بې واکه حکومت جوړ شو او بيا يې هغه سند ترلاسه کړ.

اوس د امريکا محاسبه دا ده چې بايد خپل پوځونه وباسي (ټول او يا يوه برخه) دا هر څه د دوی خپل تصميم دی، پر هغه حکومت به ولې حساب کوي چې پخپله داودزي يو وخت پر قانوني مشروعيت سربېره له اخلاقي مشروعيت نه هم بې برخې باله، داسې حکومت چې کال په کال يې د حاکميت ساحه محدودېږي او د ولس ملاتړ له لاسه ورکوي، نه لويو څواکونو ته معتبر دی او نه معامله ورسره لازمه بولي.

دکابل شړيدونکی حکومت ته په کار دي چې له خپلو تېروتنو عبرت واخلي، دوی چې امنيتي تړون لاسليک کړ دا يې له ولس سره جفا وه، ځکه چې د امريکا وحشتونو ته يې جواز ورکړ. اوس که امريکا غواړي د جنگي تگلارې پر ځای د سولې لاره غوره کړي، د امنيتي تړون پر لکۍ نښتل او دا نتواتې چې امريکايي پوځيان دې و نه وزي له ولس سره بله ستره جفا او خيانت ده.

اشرف غني دې دلته هلته د يو شمېر مېرمنو او يا يو شمېر ناخبره هېوادوالو نه يوازې د غوغا جوړولو لپاره گټه نه اخلي، د دې پر ځای دې په ربښتينې معنا د افغانانو د ملي اجماع لپاره کار وکړي، په کمپايني غونډو او بې معنا شعارونو يې له ولس او سياسي او ملي کدرونو سره واټن نور هم زياتېږي. يوازې د سولې عالي شورا د يارانو نه بلکې پر ټولو چارواکيو نن سبا د دوحې د خبرو پېريان ناست دي.

# که د چغو او لاپو

## پر سر جایزې ټاکل کیدای نو... !!

ت ـ مشفق

اشرف غني په خپلو خبروکې څو واري دالیونی گېړي وویشتي چې هېڅوک مې د گندمک په څېر تړون لاسلیکولو ته نشي اړ کولای.

که په خبرو اولاپو کې د مبالغې او غلو پر سر جایزې ټاکل شوې وای، د اشرف غنید غې خبرې به دکال تر ټولو لوړه جایز اخیستله.

راځئ لږ د غني دغه خبره له شته واقعیتونو سره پرتله کړو.

په تېرو څلورنیم کلونو کې د غني ـ عبدالله حکومت څومره تړونونه لاسلیک کړي او ماهیت یې له گندمک او ډیورند سره څه ډول پرتله کیدای شي؟

د مفکر ! له لوړې یوازې څو ساعته وروسته له امریکا سره امنیتي تړون لاسلیک شو چې د ده په اعتراف په تېره څلور نیم کلنه دوره کې تر ۴۵ زره تنو زیات یوازې افغان امنیتي ځواکونه قرباني شوي دي. پر هېواد مو هر کال تر پینځو زرو زیات بمونه او توغندي اورېدلي دي، په دې تېرو څلور نیم کلونو کې که د افغانانو ټوله مرگ ژوبله حساب شي تر یو نیم سل زرو په هر صورت اوړي. تاریخ به پر دې خپل قضاوت کوي او باور مو دی چې دا ټول هېواد د برخلیک په باب تر گندمک سل چنده خطرناک تړون ؤ.

ور پسې له پاکستان سره اس او پي او امنیتي تفاهم لیک تړونونه لاسلیک شول. علني پایله یې دا ده چې درې ورځې وروسته د پاکستان پوځ رسماً اعلان کړه چې د ډیورند په اوږدو کې ۹ سوه کیلو متره اغزن تار بشپړ شوی دی.

په کوم هېواد کې چې د امریکا او ناټو د لویو ځواکونو پوځي اډې پرتې وي. هغه خپل جنگي ماموریتونه آزادنه ترسره کولی شي، دغه پردي ځواکونه هر وخت د سنگین د تېرې اونۍ په څېر وحشتونه ترسره کولای شي، په سلگونو کسان په وینو کې لمبولی شي. د شپې چاپې اچولای شي، له اټومي بم وروسته د نړۍ په کچه تر ټولو ستر بم غورځولای شي، او چارواکي یې مجبوروي چې دغه وحشتونه یا باید توجیه کړي، لکه د مور بم او د کندز پر مدرسه او روغتون برید او یا پرې چوپ وي لکه په لسگونو ځله نور خونړي بریدونه.

داسې ولس ته د گندمک تړون څومره معنا درلودای شي؟ هغه یوه سیاسي مقوله ده چې مغلوب او محکوم د انتخاب حق نه لري. دکابل حکومت او چارواکیو پخپله ځان محکومیت ته ورکړی او په دې دریځ کې بیا د غرور او خودۍ خبرې د هغه ولس پر غوږونو ډېرې بدې لگېږي چې عملاً د حکومت د بې کفایتۍ، تړاوونو او محکومې تگلارې د بدو پایلو درنه بیه ادا کوي.

دکابل اداري چارواکي اوس پر دې پېژندل شوي چې د خپل دغه نیمگړي واک له پاره ټول هېواد په اور اړولای شي. په لفاظیو د ولس دغه ذهنیت هېڅکله نشي بدلولای.

مفتي محمدګل سعید

## آه! شیخ الحدیث مولانا محمد یوسف صدیقي

# دعلم له هسکه پرېوت

اولئك آبائي فجئني بمثلهم
اذا جمعتنا يا جرير المجامع

علم د الله تعالی ازلي صفت دی اوالله تعالی پخپلو بندګانو کې خاص خاص کسانوته داصفت ورکوي. الله تعالی اسمان په ستوروا وزمکه په عالمانو ښایسته کړې ده. امام غزالي رحمه الله په احیاء العلوم کې ویلي دي: العلماء سرج الأزمنة كل واحدمصباح زمانه يستضئ به أهل عصره ، یعنې عالمان دزمانوڅراغان دي ،هریويي دخپل وخت څراغ دی، چې دخپل عصرخلک ترینه رڼاخلي.که دعلماؤ په منزلت باندې قلم خپلې مخې ته پرېږدم ، نو شایداصلي موخه رانه پاته شي. له همدې ځایه داخبره جوته کيږي چې دیوه عالم وفات دامت لپاره ستر مصیبت اولوی زیان بلل شوی دی، خودومره بایدووایم چې دیوه عالم اوداعي وفات په دې زمانه کې چې څومره دخلکوترمینځ عادي شمیرل کیږي، په حقیقت کې کوم عادي یا معمول رویداد نه دی. په دې لیکنه کې د خپل ګران استاد، ستر داعي، دمیراثو(علم الفرایض) لوی مفتي اونومیالي مدرس شیخ الحدیث مولانا محمد یوسف صاحب د ژوندا و کارنامو په اړه درسره لنډمعلومات شریکوم، هیله ده چې راسره ویې لولئ .

شیخ الحدیث مولانامحمدیوسف صاحب دګل عزیز زوئ دعابدلمسی په ۱۹۶۷م کال د ننګرهار ولایت دسرخرود ولسوالۍ دسبزاباد سیمې دسینزي کلي تکړه دیني عالم اونوموتی مدرس ؤ، خپل ټول عمریې په زده کړه، ښوونه ، تدریس ، تبلیغ اوددین په لاره کې تیرکړ. دشیخ صاحب والدګرامي اګرکه خپله عالم نه ؤ، خودعلم اودعلماؤسره یې زښته زیاته مینه درلوده له همدې کبله یې غوښتل اودایي یوارمان ؤچې خپل دغه لایق زوې په دیني علومو سمبال کړي اودجامعې لپاره یې مصدردخدمت وګرځوي.شیخ صیب ابتدایي زده کړې له محترم مولوی محمداکرم صیب څخه وکړې. دوديز ديني علوم يې په بيلابيلو ديني مدارسوکې ولوستل.دچراټ په محمديه مدرسه کې یې له مرحوم سیدقریش بابا (رحمة الله علیه) ، مرحوم شیخ الحدیث قاضي محمدامین (رحمة الله علیه) ، دهیواد نامتو عالم استاد المحدثین شیخ الحدیث مولانا مفتي نورمحمدثاقب څخه زده کړې وکړې. په صوابۍ کې له شیخ الحدیث شمس الهادي شاه منصوري رحمة الله علیه نه سراجي،شریفیه اوقصیده برده لوستې وه. دتفسیرعلم یې له مولانا نورالهادي شاه منصوري څخه دصوابۍ په شاه منصورکې اوله مرحوم قاضي محمدامین صیب نه د پېښور د زریاب کالونۍ په علوم القران مدرسه کې حاصل کړ. په ۱۴۱۰ ه ق کال کې یې دادب علم کتابونه دمردان په رستم کې له شیخ الادب مولاناسعیدالرحمن څخه ولوستل. په ۱۴۱۲ هـ ق /۱۹۹۲م کال کې یې دموقوف علیه کتابونه دپېښور په الجامعة الهادیة کې ولوستل اولویه دوره یې هم دپېښور په هادیه مدرسه کې وکړه . په ۱۴۱۳ه ق /۱۹۹۳م کال فارغ شواودبحرالعلوم شیخ الحدیث مولاناسمیع الحق اودچکیسر- مولاناحسن الابرار په لاسونو دفضیلت پګړۍ وروتړل شوه .

### تدریسي ژوند:

شیخ صیب له فراغت نه وروسته تدریس ته ملاوتړله او په مختلفومدارسوکې یې په زړه پورې تدریس وکړ . دنمکمنډې په مدرسه ، دیکه توت په غوثیه مدرسه ، دپېښور ددیرکالونۍ په

زبیریه مدرسه ،دپهندوپه روْضة الاسلام مدرسه کې د تدریس سپیڅلې دنده اجراء کړې ده . تردې چې وروسته دپیښوردپهندوپه روضة الاسلام مدرسه کې شیخ الحدیث وټاکل شو. مرحوم شیخ صاحب چې دخپل وخت یوسترعالم اوتجربه کارمدرس ؤزیات شمیرشاګردان یې درلودل اوپه علمي حلقوکې یې زیات محبوبیت درلود. شیخ صیب یومتدین عالم اومهربان شخصیت ؤ. په هر چاخصوصاطالبانویې ډیره صله رحمي اومهرباني درلوده.له دنیاسره یې هیڅ زړه نه لګاوه اونه یې ورته رغبت درلود. په داسې حال کې وفات شو چې کومه دنیا ترې په میراث پاتې نشوه . عبادت به یې په داسې عاجزي کاوو چې سړی به ورته حیرانیده. ارواښادشیخ صیب په علم الفرائض (میراثوعلم) کې زیات مهارت درلود، او د علم الفرایض درس یې زیات مشهور ؤ. ما (ددې کرښو) لیکوال ترینه سراجي ،شریفیه اود میراثو نور درسونه لوستي دي، دشیخ صیب درس ته به په سلهاؤ طالبان ناست ؤاوله ده څخه به یې استفاده کوله . له تدریس سره یې مینه زیاته وه ، نوځکه به یې تدریس په ډیر شوق سره کاوه او په اوچت اواز به یې سبق وایه .

## دکابل په جامعه فاروقیه کې

دافغانستان دطالبانوپردین اوشریعت مین اسلامي تحریک دواکمنۍ په خپله شپږکلنه ناکراره موده کې نه هیریدونکې، دیني ، سیاسي، اجتماعي داسې لاس ته راوړنې ترلاسه کړې دي چې له ده څخه دمخه حکومتونویوه هم نه وه کړې،سره له دې چې هرډول امکانات هم ورسره ؤ،چې دهغوله جملې څخه یوهم ددیني مدارسوتاسیس ؤ.کله چې طالبانوکابل ښار ونیوه او د افغانستان زیاتره سیمې یې له خپل واک لاندې راوستې نو دهیوادپه سطحه یې په ټولوولایتونوکې لوې لوې دیني علومو مدرسې جوړې کړې .ددغو مدرسوشاګردان به تکړه زده کونکي اومبارز مجاهدین ول . دکال زیاته برخه به په درسونواخته ؤ اوضرورت په وخت کې به دجنګ لومړیوکرښوته تلل اوهلته به یې دخپل دښمن په مقابل کې په ډیرشجاعت اوپوره میړانه جهادته ادامه ورکوله .دوی په کندهارکې جامعه عمرجوړه کړه، په جلال اباد کې یې جامعه صدیقیه ، په خوست اونورو ولایتونوکې یې هم ددیني علوموددتدریس اواشاعت لپاره لوی لوی مرکزونه جوړ کړل اودتدریس لپاره یې دغومدارسو ته دګوتوپه شمیر وتلي عالمان دهیوادله ګوټ ګوټ اودپښتونخواله آیالت څخه راټول کړل . په دې لړکې دطالبانودهغه وخت دمعارف وزارت وتلي وزیراونوماندشخصیت ښاغلي مولوی امیرخان متقي صاحب ( الله تعالی دې دلازیاتوخدمتونولپاره اوږدژوندورکړي .) په کابل کې د (الجامعة الفاروقیة) په نامه یوه لویه دیني مدرسه جوړه کړه. دامدرسه په خپل وخت کې له ګردوڅخه لویه دیني مدرسه وه، چې په خپله دافغانستان طالبانو زده کړې په کې کولې. دمدرسې مؤسس جناب متقي صاحب داستاذانوتنخااو د طالبانوغذائي لګښت له بیت المال څخه ورکاوه. ښاغلی متقي صاحب چې سیاسي بصیرت اوپوهه لري، هڅه یې داوه چې ددې مدرسې لپاره د ګوتوپه شمیرنامتومدرسین اوعالمان له لر او برنه را ټول کړي اودامدرسه دهیوادپه سطحه دعلم اوعرفان عظیم مرکزوګرځي. هماغه ؤچې په خپل دې هدف کې کامیاب شواوعمده مدرسین یې دې جامعې ته راغوندکړل . داجامعه چې ګڼ شمیرطالبان په کې روزل کیدل اوپه افغانستان اوپاکستان کې یې نیک شهرت خپورؤ ، د موقوف علیه اولویې دورې په شمول ګردفنون په کې تدریس کیدل اوشیخ الحدیث مولانامحمدیوسف نورالله مرقده په دې مدرسه کې مدرس وټاکل شو.

شیخ صاحب ډیرخاکسارانسان ؤپه طبیعت کې یې عاجزي وه ، دډیرونرمواوعالي اخلاقوڅښتن ؤ، متقي ، پرهیزګاره اومتواضع عالم ؤ. په نقلي اوعقلي علوموکې یې لوی لاس درلوداوهم یې په معقولاتو کې عمیق معلومات درلودل . په سراجي یې دنورالناجي په نامه شرحه هم لیکلې ده اوچاپ شوې هم ده. په میراثوکې دنوم خاوندؤ. دده سراجي اودمیراثو درس لوی نوم درلود او زیات شمیرطالبان به ورته کیناستل .

**په اسلامي امارت کې خدمت :** شیخ صاحب دافغانستان په اسلامي امارت کې دقضاء په کمیسیون کې دنده اجراکوله. دشیخ الحدیث مولانامحمدشریف بغلاني سره یې دمعاون په حیث خدمت ګمارل شوی ؤ،اوپه ډیراخلاص سره یې

داسپیڅلې دنده سرته ورسوله . دشیخ صیب له اخلاص نه ډک خدمات اودا غریبانه ژوند چې سره پرتله کړای شي نویقیناچې داسلافوتاریخ موږ ته رایادوي، چې هغوی به هم په لږ اومعمولي رزق بسنه کوله اوخپل ځان به یې ددین خدمت ته وقف کړی ؤ. شیخ صیب په غریبۍ اوناچارۍ کې داسې تدریس وکړ،چې معاصرعالمان به یې تدریس ته گوته په غاښ ؤ، دطالبانو دومره زیات هجوم اودشیخ صیب دومره په تسلي اواطمنان سره تدریس به دانسان په ذهن کې داخبره راوگرځوله چې جناب شیخ صیب خوتدریس ته ښه فراغ البال اوله هرڅه نه مالامال دی،حال داچې دده ژوندفقراوغربت ژوندؤ اوزړه یې دشاهانو په څیرمستغني ؤ. دی دهغو کسانوله ډلې څخه ؤ چې یوازې دالله تعالی رضااوددین خدمت یې دځان لپاره کافي گاڼه.

## دشیخ الحدیث مولانامحمدیوسف ځانگړتیاوې:

مولوي صاحب له یوه پلوه درویش، عابد او زاهد ؤ، خو ورسره نومیالی عالم او محقق ؤ، پر خپلو افغاني روایاتو، زهد او تقوا ښو اخلاقو، تواضع اوعلمي پلټنو سخت ولاړ و، مجلس یې خو ږ او پراخ و، د خپلو تېرو صالحینو د علم او عمل ښه نمونه و مرشدانه شفقت محبت او مهرباني یې درلوده، او یو شمېر شاگردان یې پرېښوول چې په حقیقت کې د ده علمي ترکه ده.الله تعالی ده جناب ته ډېر ښه صفات ورکړي وو. چاچې لیدلی ؤاویایې ورسره تعلق ؤنویقیناچې هغوی هم دده په دې ټولوصفاتو باندې اعتراف کوي. یوڅوصفات یې اجمالاًپه لاندې ټکوکې راټولوم:

١ـــ صبراواستقامت

٢ـــ تقوی اوحلم.

٣ـــ عاجزي اوانکسار

۴ـــ له هرچاسره په ورین تندي مخامخ کیدل

۶ـــ همیشه له اختلافاتوڅخه ډډه کول اوشاگردانو ته په دې اړوندتوصیه کول.

٧ـــ همیشه په حق باندې قایم پاتې کیدل.

٨ـــ په علمي حلقوکې بې سارې محبوبیت اومقبولیت.

٩ـــ خوږه ژبه اونرمه لهجه یې درلوده چې دهرچاسره به مخامخ شونوپه تبسم اوخندابه یې ورسره روغبړ کاوه.

شیخ محمدیوسف رحمة الله علیه په دې سربیره چې متبحرعالم ؤ، دمجاهدینولپاره یې دیوښه لارښودحیثیت درلود. ده به همیشه له مجاهدینوسره لیدل ،هغوی ته به یې توصیې کولې اودخپل توان په اندازه یې ورسره دخیر په چاروکې همکاري کوله. ده پخپل ژوندکې دتدریس اوجهاد ترڅنگ دعاومسلمانانوتنازعات هم حل کول اوحتی دقومونوپه سطحه به یې شخړې هوارولې. د نوموړي دزوئ عبدالرحمن له خولې چې شیخ صیب دزنکدن په وخت کې داخبره کوله چې داارمان مې په ژوندپوره نشوچې یوځل بیاسوله راشي اوپه هیوادکې دمخکیني په څېر سپیڅلی نظام قایم شي،کاشکې چې په ژوندکې مې یوځل بیادطالبانوشرعي نظام هیوادکې لیدلی وای.

اجتماعیت اوغوره اخلاق یې بله ځانگړنه وه، الله تعالی ورته کریمه اخلاق ورکړي ؤاودخپلوښواخلاقوپه وجه پرخپلوملگرو ډیرگران ؤ، نوپه ټولنیز ډول به ووایوچې ټول هغه صفات پکې څښتن تعالی ایښی ؤ،کوم چې دیوه نیک انسان دتکامل لپاره اړین دي.

نوموړي د تدریسي بوختیاوو ترڅنگ تبلیغي بهیر هم تاند ساتلی و . یومتعبداومتقي ملاؤ، همیشه به دخدای ( ج ) په ذکراوعبادت کې بوخت ؤ . هر ځای ته به چې لاړ سمدلاسه به یې دوه رکعته لمونځ اداکړ . دجماعت دلمانځه به یې زیاته پابندي کوله . چې څومره ضروري کار به یې ؤو هغه یې پرېښوداودجماعت لمانځه ته به یې ځان رساوه. هروخت به یې ذکر وفکرکاوه او زیاتره وخت به په عبادت اومطالعه بوخت ؤ .

ډېر باجراته عالم ؤ،خوش اخلاقه، دشاگردانومحبوب اوجذاب شخصیت ؤ، دمسلمه امت په موجوده دربدره حالت اودکفري نړۍ په دسیسوخبرسړی ؤ.تقوی، دیانت او په نبوي سنتوتمسک دشیخ صیب طبیعي خاصه اوله تظاهراتو ریاکاري څخه یې کرکه کیدله . خلاصه داچې مرحوم مولانابحرالعلوم، مجمع العلم والفیضان لوی شخصیت

وه اودپاک نفس مطمئنه اوراضیه حیثیاتوخاوندوه مونږ ده ته په عالږ قدس کې دحق تعالی ذات اقدس له حضوره دمرضیه مقام موندل غواړو.

**دشیخ الحدیث حضرت مولانا میرمحمدفاروق تاثر:** «شیخ محمدیوسف صیب دعاجزئ اوخاکسارئ نمونه وه، دانسانیت دبشپړتیا صفات پکې ټول موجودؤ، متواضع عالږ ؤ، ده به زیاتره وخت داخبره کوله (چې یوڅوک دوه ځلې دبولوله ځایه راوتلی وي، نوهغه په څه شي کبراوغرورکوي،انسان خویوځل دپلارله نطفې اودوهم ځل دمورله رحم راوتلی دی، نودی په څه شي غرور اوکبرکوي؟) اجل چې راشي اوخت پوره شي نوبیاد انسان روح له جسدڅخه والوزي. شیخ یوسف صیب چې له تبلیغي اجتماع نه بیرته کورته راستنیده ، نوپه لاره کې دترافیکي پیښې له امله سخت ټپي شو،چې څوورځې بې هوشه اوپه هیڅ نه پوهیده، ماورته له کورنه بستره راوړه اوهسپتال ته ورغلم .له هغې حادثې نه الله شفاء ورکړه اواوس په داسې حال کې چې تدریس ته به یې تګ راتګ کاوه اوروغ رمټ ښکاریده، وفات شو.په کومه ورځ چې دی وفات کیده له دغې ورځې یوه ورځ مخکې یې راته تلفون وکړ اوویې ویل: چې دلته یوه جلسه ده نوکه ورته راشې . ماورته وویل:چې شیخ صیب !نوته یې څه کوې چې ماورته درغواړې،ده راته وویل:چې زه تا ددې لپاره راغواړم چې زمایادشوی یې،نوکه راشې لږ مجلس به سره وکړو. هماغه ؤچې سبادجمعې په ورځ په حق ورسیداو دقبرسرته یې ودریدم.

شیخ صیب سره مې دملګرتیاډیره موده وشوه خوداسې جامع الکمالات انسان مې تراوسه ونه لیده، دصداقت، دیانت ، عجز، انکسار، تقوی ، علمیت، پوهې ، اخلاقو اونورو انساني صفاتونمونه ؤ. دکتاب، طالب، اوعالږ به یې زیات قدر کاوه، اودکتابونوله مطالعې اودرس ، تدریس نه ماسوی نور هیڅ یودنیوي شغل سره یې زړه نه لګیده« .

**دشیخ الحدیث مولاناعبدالغني حقاني تاثر:** «شیخ محمدیوسف صیب سره مې له ډیره وخته اشنایي اوتعلق ؤ، یقیناچې جامع عالږ اوټول منلی شخصیت ؤ، ښه اخلاق یې درلودل ، له دریو ډلوسره یې زیاته مینه درلوده :(طالب العلمانو، تبلیغي جماعت اوددیوبندمسلک له عالمانوسره) . دوخت زیات پابندؤ هغه وخت چې موږ دکابل په جامعه فاروقیه کې مدرسین ؤ، نودطالبانو مشرانوبه موږ ته میلمستیاوې کولې اوموږ به یې دعوت کولو. شیخ صیب به زیاتره وخت هغوی ته داتوصیه کوله چې موږ زرتر زره رخصت کوئ چې زموږ درسونه دي اودمطالعې وخت موخرابیږي،نوځکه به یې زیات وخت چیرته نه تیراوه،دعاجزي اوانکسارنمونه وه. زه به یې کوم کوم صفات بیان کړم ،یقیناچې دده صفات په دې یوڅوکرښوکې نه راټولیږي.همیشه به یې له موږسره داسې برخوردکاوه لکه یوشاګردیې چې له استادسره کوي،اګرکه دی زموږشاګردنه،بلکه موږ دواړه دیوې مدرسې مدرسین ؤ.دملګرتیامې ورسره ډیره موده وشوه،ډیرې ښې خاطرې ترینه لرم،چې ذکرکول یې دالیکنه اوږدوي«.

**د شیخ الحدیث مولانا محمدسلیم حقاني تاثر:**

»قال السفیان الثوری رحمة الله علیه : اول العلم الاستماع ثم الانصات ثم الحفظ ثم العمل ثم النشر .ژباړه: سفیان ثوری رح فرمایی : اول د علم اوریدل دي ، بیا خاموشي ده ، بیا یادول دي، بیا پرې عمل کول دي او بیا ددی علم نشر او اشاعت دی .

په دې پُر فتن دورکې د سفیان ثوری رحمة الله علیه ددې قول مصداق ډیر کم خلق دي، چې په خوارۍ او غریبۍ کې د علم سمع او حفظ وکړي،خا صکر په دهجرت په دیار او د سفر په حالت کې او بیا یې مشق وګرځوي او بیا ددې علم د نشر او اشاعت لپاره ټوله زندګي وقف کړي، خو عادت دالله تعالی په دې جاري ده چې د آدم علیه السلام له دېکمزور و او عاجزو بچیانو نه ځینی کسان انتخاب کړي او ددین خدمت ترینه واخلي. دداسې کسانو څخه د قرآن مفسر، دنبوي احادیثو شیخ ،د فنونو ماهر ،د میراث دعلم مفتی شیخ الحدیث محمد یوسف صدیقی ؤ. شیخ صیب زموږ همدرسی وه د ځواني له وخته حلیم الطبع خاکسار، عاجز انسان ؤ، همیشه به په ورین تندی سره مخامخ کیده ، بی تکلفه خبرې، او

بې تکلفه زندګي الله ورکړې وه. د علم د تحصیل له زمانې نه د احادیثو د درس ترمسند پورې دتقوا او عمل یو سمبول ؤ .

شیخ صیب رحمه الله سره مو یو ځای د طالبۍ دوره تیره کړه، بیا مو یو ځای په یوه مدرسه کې زیاته موده تدریس وکړ او په ځینو سفرونو کې هم سره یو ځای پاتې شوي یو. الله تعالی ورته ددین په احکامو د عمل کولو عجیب توفیق ورکړی وه. یو ځل دواړه د کویټې په سفر روان وه عمومًا د کویټې دبس ډریوران ټوله لار دساز او سرود کیسټې غږوي، شیخ صیب ورته څو ځله د کیسټې د بندولو وویل: خو هغوی نه منله تردې چې ډریو ر او کلینډر جنګ کولو ته اماده شول ، نو ما شیخ صیب ته وویل: چې عظیمت به پریږدو په رخصت به عمل وکړو،

خو بیا هم شیخ صیب ددې لپاره چې ساز او سرود وانه وریدل شي، په خپلو غږونو کې یې ګوتې ورکړې وې .

شیخ صیب د عاجزۍ او للهیت یو پیکر وه ،له دې سره سره چې په یوه مدرسه کې موږ دواړه استاذان وه، خو بیا هم په څو کلونو کې زما او د شیخ صیب ترمنځ معمولي خبره هم نه وه راغلې. بلکه همیشه به یې هره خبره د مشورې په انداز کوله .

شیخ صیب په رښتیاهم د سفیان ثوری رح د قول مصداق وه چې په ډیره غریبۍ او ناچارۍ کې یې علم حاصل کړ او بیا یې تر ل عمر په خورا دیانتدارۍ سره د علم نشر او اشاعت وکړ . الله تبارک تعالی دې شیخ صیب ته جنت الفردوس ورکړی. الله دې خپلو نعمتونو ونازوي.«

شیخ صیب زما( ددې کرښولیکوال ) استادؤ. شیخ صیب یوتکړه مدرس ؤ. له لرې لرې سیموڅخه به طا لبان دده درس ته راتلل ، دتدریس یوځانګړی ذوق یې درلود اوپه ډیره مینه به یې تدریس کاوه. دده په سبق به هرطالب پوهیده اګرکه ذکاوت به یې نه درلوده ، ځکه چې ددرس طرز یې اسان اوعام فهمه ؤ. خدای جل جلاله ښه فصاحت او بلاغت ورکړی و . طالبان به یې په درس ډیر را ماتول . درس به یې په خوږه ژبه اواسانه لهجه وایه. دده له مړینې درې ورځې مخکې مې دشیخ سراج الدین صیب په جنازه کې ولید، نوډیرې له مینې ، محبت ، شفقت اولطف څخه ډک روغبړ یې راسره وکړ . یقیناچې دشیخ سراج الدین علیه الرحمة دفراق غم مې دده په لیدوسیک شو ، دوه ورځې وروسته دده په مړینه خبرشوم .ریښتیاهم چې ددواړواستادانوغم ډیر دروند ؤ.

**اولادونه:** نهه زامن اودرې لونې ترینه پاتې دي او اووه ورونه یې درلودل. دوه ورونه یې ترینه مشران اونورکشران دي .مشر زوئ یې عبدالرحمن اودوهم زوئ یې عبداللطیف نومیږي ،چې دواړه ددیني علوموزده کوونکي دي.

مړینه: شیخ الحدیث مولانامحمدیوسف صدیقي د۵۲ کلونو په عمر ۲۰۱۹م کال دفرورۍ په ۱مه دجمعې په ورځ ( ۲۵ جمادی الاولی ۱۴۴۰ه ق) سهارنهې بجې په حق ورسید. داحادیثونیمه خواشاګردانو یې په هجران اوښکې تویې کړې،دجنازې لمونځ یې دپیښوردپهندوپه هایی سکول کې اداکړی شو . له شمیره زیاتو خواصواوعوامو یې جنازه کې ګډون کړی ؤ، دجنازې لمونځ یې دشیخ الحدیث مفتي سیدقمرصیب په امامت اداکړای شو اودغریب اباد دپهندوبابا په هدیره کې دغه ستره پانګه خاورو ته وسپارل شوه. دقبرسره یې شیخ الحدیث مولاناعبدالغني حقاني صیب جامع بیان وکړاودده کمالات ،خدمات او........ یې خلکوته یادکړل.

دشیخ صیب ټول ژونداسلامي علومودخدمت،تدریس ، تصنیف اوسیاسي جهداومبارزې نه عبارت ؤ. الله تعالی دې دمرحوم اومغفورکړي دیني اوعلمي خدمتونه قبول کړي اوورثه ؤ اوشاګردانوته دې صبراوزغم ترځنګ دهغه په مسیربانډې داستقامت اوتللوتوفیق ور په برخه کړي. ریښتیا خبره داده چې ددې لوی علمي شخصیت دفضیلت داسمان د لمروفات یوازې دده دکورنۍ لپاره مصیبت نه دی بلکه دټول افغانستان اواسلامي جامعې لپاره خصوصاً دعلم اوفضل خاوندانولپاره لوی مصیبت اونه جبرانیدونکې ضیاع بلل کیږي.

زه داخپله لیکنه په دې شعر پای ته رسوم:

ستا د ښایست ګلونه ډیر دي
ځولۍ مې تنګه زه به کوم کوم ټولومه

ترتیب : خبیراحمد م

# د وینا کولو لپاره ۷ مهمې نکتې!!

څېړني او تحقیق ښیي چې کله مونږ غواړو دخلکو په منځ کې خبري اووینـاوکړو دلـږ ترلـږه ۷ کلیمـو اولغـاتو لـه تلفـظ ورسـته د اوریدونکو دمثبتو او منفي تاثراتو او برداشتونو هـدف گرځـو، هغـوئ د۷ کلماتو له وړاندې کولو ورسته زمونږ لـه خـبرو برداشـت اوانگیرنـه کـوي ، زمـونږ دخـبرو پـه مفهـوم او پیغـام قضـاوت پیلـوي ، زمـونږ دشخصیت اواحساس په باب نتیجه گیري اخلي

که چیري دوینا اوبیانیي اورولو اوویلوپه مهـال ترفشـار اوتـاثیر لاندي رازی ، متردد کیږي او الفاظ مو گډوډی خواته مـیلان کـوي ، یامو اواز متزلنزل اولرزیـږي ، یـامو درعـب داسـې حالـت دربانـدي وزري غوړوي چې حتی اواز مو توند اویادیر ټیټ شي اویا دیته ورتـه له نور ستونزو سره لاس اوگریوان کیږي ؛ نو لطفـا لانـدي ۷ مهمـي نکتي په پام کې ونیسي

ترڅو په خپلـې بیـانیي اووینـا کولـو غلبـه پیـداکړي ، سـامعین اومخاطبین مو له خبرو او معلوماتو خوند واخلي ، ترپایـه درسره ملـه اوملگري پاته شي ، بدرگه اوتشویق موکړي

**۱ ـ دخبرو طرز او طریقه مو بائید واضحه وي .**

په دې معنی چې دوینا ټکي مو دقیق ، مرتب ، قاطع او خپلـه وربانـدي بـاوري ووسـی ، کوشـش وکـړی دخـبرو طـرز مـو تـوري خـوږونکي او زدوونکـي ونـه وسي ، الفـاظ پـه نرمـه اوپخـه لهجـه وړاندي کړی ترڅو اوریدونکي ونه فهموي چې ویناوال دخبرو پـه دې ځای کې له عصبانیت اوتوندی کار اخیستی

**۲- خپل غږ منظم کړی .**

کلـه چـې تاسـې ډیـر پـه ټیـټ غـږ خـبري کـوی مخـاطبین فکرکوي چې وینا کونکی په یو ډول اضطراب اختـه دی ، یـا داسـې فکرکوي چې موضوع وینا کونکي ته مهمه اوبا ارزښته نده ؛ نو لطفا خپل غږ نورمال او او چت کړی ترڅو خپل ټکی دخلکو غوږونوته په اسانی ورسوی ، یعنـي ستاسـې اواز بائیـد دومـره ټیـټ نـه وي چـې اوریدونکي له کړاو او پوښتنو سره لاس اوگریوان کړی .

**۳ ـ وقفه کول .**

که چیري دخبرو وخت کم وو نو مختصـري خـو تـاکلي خـبري وکړي ؛ ولې یوه شي ته موپام وي چې که هم ډیري خبري کـوي او هم یې په عجله کوی دغه کار ممکن ستاسي وینا بې اهمیتـه اوبـې فهمه کړي، که چیري وخت مو درلود او خلـک مـو خـبرو تـه لیوالـه وو، خو تاسې دسترتیا احساس وکړ نو داوریدونکو په خوښه دوینا پـه منځ کې لنډه وقفه هم کولای شي ، لکه دابو څښل یا ورته عمل ..

**۴ ـ په خبرو کې له خوندور لهجو گټه اخیستل**

که چیري دوینا ترپایه په یوه لهجـه خـبري وکـړی او دالفـاظو په بیانولو او صادرولو کې له تنوع کار وانخلي ممکـن پـه اوریـدونکو یو ډول ستوماني راولي ، زیارو باسی چې دمهمي اوجالبي جملي پـه وخت خپل غږ ته ښکلا ، اهنگ او سیوری ورکړی ، ترڅو مو خلـک خبرو نور متوجه او دجملي اهمیت یې زړونو ته ښه وغورځیږي .

**۵ ـ دخبرو دپای جملي مو باید په ټیټ خوږه منونکي طرزوي.**

ددې لپاره چې وینا مو دخلکو په ذهنونو کې پاته شي ، نو دخبرو شروع اوخاتمه مو بائید قدرتمنده اواحساس ورکونکي وي ، سامعین اومخاطبین په اعتماد اوباور کې ونغاړي ، خپل پیغام هغوئ ته خلاصه اوپه زرینو کرښو انتقال کړی ، مهمي جملي ورته بیابیا تکرار کړی ، داچې دوینا ترټولو عمده برخه مو داوریدونکو په ذهنونو کې ښه ځای ونیسي نو بده نده چې له خپلو مخاطبینو پوښتنه وکړي چې زما دخبرو مفهوم او خلاصه مو په ذهن کې کیناسته؟

**٦ ـ خپل اوریدونکي درک کړی**

توجه ولری چې تاسې ته دکومي کچې اوفهم اوریدونکي ناست دي نو لطفا دهغوئ دوړتیا او فهم په مستوا برابره موضوع مطرح اوجملي وکاروی، یعني څوک چې دمایکرافون اوستیج مخته دریږي او ځانته داحق ورکوي چې څه ووایي هغه بائید ځان معلم او لارښود وبولي ، هغه څه ووایي چې فکر کوي خلکوته پرې سود او ګټه رسولای شي ، نه داچې هغوئ په تیاره او وسوسو کې وغورځوي

ساده لحن او الهام ښونکي کلمي وکاروی ، جملي مختصري ولوروي ، له مغرضانه او په مجلس له غمونکو او غصه پارونکو خبرو پرهیز وکړی، مخامخ په چا اعتراض مکوی دچا نوم دغندني په نیت مه اخلی ، ټول مجلس دصمیمیت او خواخوږی تلقین وښئ

**۷ ـ په ضعیفو او تشریفاتي خبرو پیل مه کوی**

په ضعیفو او بې ارزښته کلمو خبري مه پیلوی چې مبدا دخلکو اعتماد له لاسه ورنکړی او له وینا څخه مو خلک بیزاري ونه ښیي ، دخبروپه پیل کې له تشریفاتي لب لهجي څخه ډډه وکړي مثلا (له تاسې ډیره مننه چې راغلي یی ، ویاړلرم چې ستاسي په منځ کې قرارلرم) اوداسې نور ، دغه تشریفاتي اوکلیشه یی خبري ستاسي وینا اوقوت پیکه کوي ، یعني دخبرو پیل مو بائید په موثرواوزره منونکو لغاتو او کلمو ووسي .

Front of room where Amir ul Mumineen Mullah Muhammad Umar Mujahid (RA) spent the last 7 years and 5 months of his life and also passed away in.

# له قبره د ملا عمر وروستی ګوزار

د ملا محمد عمر اخوند د ژوند په باره کي وروستیو نویو معلوماتو نه یوازي په افغان میدیا کي هنګامه جوړه کړې ده، بلکي په غربي مطبوعاتو کي یې هم زیات پوس پوس او پټه پټه خندا را ولاړه کړی دی.

د ملا محمد عمر داستان واقعا چي سي ای ې ریشخند او سنف کړه. د جهان د جاسوسۍ ټاپ سازمان[سیا] دونه بې وقوفه ده چي حریف یې فقط په څو قدمۍ کي ژوند ورته کاوه، خو سیا ترې بې خبره وه.

د کابل د رژیم استخبارات خو هسي هم د فیل په غوږ کي بیده دي، ارګ او استخبارات یې عموما تر ږغ وروروسته چهار زانو کښېني. دار داري امر الله صالح اوس رېزونه شروع کړي دي، او ارګ اوس په متې له خوبه راویش سو.

ملا محمد عمر که ولي نه وو خالي هم نه وو! ځکه حتی په مرګ کي یې هم خپل دوښمنان د عالم رسوا او ریشخند کړل.

د زابل ولایت له خاورین او ساده قبره څخه د ملا محمد عمر اخوند دا وروستی ګوزار دونه کاري او حیرانونکی دی چي په واشنګټن کي د دفاع وزارت او سیا دواړه په غارونو ننوتلي دي، او له شرمه پټ سوي دي.

زه پوره باور لرم چي د زمان په تېرېدو سره به د سیا او د افغانستان د ملي امنیت د ریاست د غفلت او بې کفایتۍ نوري تاریخي شهکارۍ هم رابرسېره سي.

فقط څه انتظار باید وباسو!

# دعلماءِ کرامو دپام وړ ...

محمود افغان

دامام بخاري او امام مسلم دواړو په روایت کله چې رسول الله ﷺ معاذ بن جبل رضي الله عنه دیمن یوې برخې ته او ابو موسی اشعري رضي الله عنه بلې برخې ته دجلا، جلاحاکمانو په توګه لیږل: هغوی ته یې حکم وکړ: یَسرِا وَلا تُعَسرِا بَشرِا وَ لا تُنفرا وفی روایة تَطَاوَعَا ولا تَختَلِفا، اساني کوئ سختي مه کوئ، زیري ورکوی، نفرت مه خوروئ ، دیوبل اطاعت کوئ او اختلاف مه کوئ

دې روایت ته په پام محدثینو لیکلي: ددین داعي لپاره ضروري ده چې پخپل دعوت کې خلکو سره له اسانۍ کار واخلي او دهر هغه څه نه ډډه وکړي ،چې په خلکو سخت او بوج تمامیږي، یعنې داعي او عالم به خلکو سره داسانتیاوو التزام کوي ا وپه خلکوبه دمشقت او سختۍ نه ډډه کوي

بل دداعي لپاره ضروري ده چې هغه خلکوته تبشیر او زیری ورکړي زکه په دې سره دحق منلو او دحق قبلولو لورته دخلکو په رغبت او میلان کې زیاتوالی راځي

داچې معاذ بن جبل رضي الله عنه او ابو موسی اشعري رضي الله عنه په یوبل امیران نه وو او نه دریم تن په هغوی باندې امیر و، په دې وجه رسول الله ﷺ دواړوته دیوبل دپیروۍ ، اطاعت اود یوبل سره د اختلاف څخه داجتناب حکم وکړ

په ورته توګه عالمان او داعیان مکلف دي چې دیوبل څخه پیروي او داختلافو نه به ډډه وکړي

څنګه چې نن زموږ هیواد او ولس دتاریخ یونازک او حساس پړاو ه تیریږي او له تیرو اتلس کلو راهیسې دبیرونه تپل شوې وحشیانه جګړه دپای شیبې لنډوي او خارجي یرغلګرو ځواکونه دوتلو سره سم مختلفې اوازې او پروپاګندونه خوروي چې دوتلو وروسته به یې بیا افغانستان دخپلمنځي رقابتونو ، جګړو او مرګونو یو داسې ګرداب شي چې افغان ولس به په اسانه ترې دوتو او نجات لار ونه مومي او هم به دتیر اتلس کلن تاریخي جهاد ارمانونه او هیلې د شوروي اتحاد دیرغل په خلاف دجهاد دارمانونو او هیلو پشان نیمه خوا پاتې شي.

ددې لپاره چې دامریکا پخلاف دافغان ولس دجهاد ارمانونه او هیلې مو نیمه خوا نشي، دهیواد علماء کرام ، فقهاء، مفتیان او داعیان دي خپلو دیني او ملي مسؤلیتونو ته متوجه ووسي او دراتلونکي نظام جوړولو په برخه کې دپورتني نبوي فرمان پام کې نیولو سره معاصر اسلامي قضایا تعبیر و تشریح کړي، په هر هغه امریاقضیه کې چې دسختۍ او اسانۍ دواړو احتمال شتون ولري هلته دي داسانۍ لورى ارجح وګڼي.

څنګه چې اوس په نړیواله سطحه مسلمانان مغلوب او کافران غالب دي، دمسلمانانو زیاتره واکمن هم دکفري هیوادو لاسپوڅي او خدمتګاران دي او په ټولو اسلامي هیوادو کې هیڅ یو واکمن یا هیواد نشته چې هغه دي دمسلمانانو مصالحو او داسلامي شریعت احکاموته التزام ولري بلکې هغوی هلته دلږو ډیرو

شته اسلامي حکمونو په لمنځه وړلو لګيادي مختلفې بهانې او پلمې جوړوي او په هغو دقيوادتو لګولوکوښښونه کوي ليکن ددي باوجود په ځينو هيوادو کې علماوو دخپلو حکيمانه اومدابرانه کردارونو په برکت هلته دډيرو لويو بد مرغيو، ناخوالو ، بنديزونو او ستونزو باوجود داسلام دمبارک دين د شعايرونه په کلکه دفاع اوننګه کړې او پري بوخت دي ،داسلام او مسلمانانو دملي او شرعي وجود دساتنې لپارههغوی ارزښتمن پلانونه اوتدبيرونه په کار اچولي

دې لړ کې ترټو ښه مثال په هندوستان کې دعلماوو مدبرانه کردار او عمل دی، دکوم په سبب چې هلته ديولوی اکثريت ( هندودين) په وړاندې دشاوخوادوه نيم سوه مليونه مسلمانانو اسلامي او ملي وجود يې خوندي ساتلی

ښکاره ده هندوستان دنړۍ په سطحه هغه دوهم هيواد دی چې د دولس سوه مليونه نفوسو په درلودو يواځې دچين څخه وروسته دی اوووګړي يې دسلو نه په زياتو ژبو خبرې کوي، فی الحال هندوستان په اقتصادي ډګر کې( دجی ډي پی له پلوه) دنړۍ اووم او دخريدقوت د پلوه دنړۍ دريم لوی اقتصاد هم ګڼل کيږي چې په ډيره تيزۍ سره ديو صنعتي هيواد درجې حاصلولو په لور ګامونه اخلي

هندوستان دبرتانوي قانون لاندې په ۱۹۴۷ز کې داګست په ۱۴- ۱۵ مه نيته په دوه جلا هيوادو (هندوستان او پاکستان) وويشل شو ،ختيځ بنګال دپاکستان او غربي بنګال دهند برخه شو اوديا دونې وړه چې د هند دويش اصل محرک ځواک دمسلمانانو هغه تحريک و چې مشرې يې محمد علی جناح کوله

دلته دتاريخ يو ه حواله را وړل ګټه لري چې انګريزنه دهندوستان دازادۍ تحريک (د۱۸۵۷- ۱۸۵۸ ) نه وړاندې دعلماوو په فتوا شروع شوی و او ترټولو اول حضرت شاه عبد العزيز صيب دهندوستان د دارالحرب فتوا جاري کړيوه، بيا دحاجي امداد الله مهاجر مکي په مشرۍ مولانا محمد قاسم نا نوتوي او مولانا مفتي رشيد احمد ګنګوهي ، علامه فضل حق خير ابادي او دهغه ملګري مفتي صدر الدين خان اونورو په فتوا عملاً مزاحمت شروع شو، خو هغوی دانګريزانو دپرمختللي معاصر ځواک په وړاندې مات شول او په ټول هندوستان انګريزي سلطنت قابض شو، وروسته انګريزنه دهمدې شکست غچ اخستلو لپاره دارالعلوم ديوبند رامنځته شوه چې دعملي جهاد ترڅنګ يې دعلماوو، فقهاوو، محدثينو ، مفسرينو ، مصنفينواو متکليمنويو لوی قوي جماعت تيارکړ،د دار العلوم ديوبند مشر مولانا محمود الحسن او مولانا حسين مدني ، ابو الکلام ازاد او نور په زرګونو علماء زندانوته لاړل ، په زرګونو نور شهيدان شول خو دانګريز خلاف دجهادي، سياسي او علمي مبارزې نه لاس په سر نشول ليکن کله چې په۱۹۴۷ زکې د برتانيې [دار العوام] دهندوستان دازادۍ قانون منظور

کړ ديو ډير لوی ساز ش په نتيجه کې يې علماء په دواړو هيوادو ( پاکستان او هندوستان) کې دواک څخه لري کړل، چې په دې سره دواړو هيوادو کې علماء ديوې حادثې او فاجعې سره مخ شول ليکن هغوی بيا هم مايوس نشول او نه دخپل همت نه لاس په سرشول که څو هم هندوستان دهندوانو او پاکستان دمسلمانانو لپاره ځانګړی شوی ،ليکن هغه ايالتونه چې دهندوستان په برخه و رسيدل ،هلته دهندوانو ترڅنګ په مليونو نو مسلمانان هم اوسيدل، څوک چې دهندوانو دډير لوی اکثريت رحم و کرم ته پاته شول ليکن هغه مهال دهندوستان علماء مايوس نشول اوهغوی دخپل سياسي اثرو رسوخ او دهندوستان دمؤسس ګوند ( کانګريس) سره دښو اړيکو نه په استفاده دهندوستان په اساسي قانون کې يې دهند وستان دټولو اديانو دپيروانو لپاره مذهبې ازادې ديو اصل په توګه درج کړه او دهغې له مخې يې دګردو اديانو پيروانوته د احق ورکړ چې هغوی دخپلو ديني شعايرو سره يوځای په هندکې دازاد ژوند تيرولو حق لري اوهم خپل ديني شعاير او ارزښتونه پرته دکوم ډار اوبيم څخه په ازادانه توګه اداء اوخوندي او پاللی شي که څو هم متعصبوهندوانو په کراتو مراتو دخپل اکثريت نه په ناوړه ګټه پورته کولو سره دقانون دغه اصول ترپښو لاندې کړي او په تيرو اويا کلوکې يې په مسلمانانوبيدريغه وحشتونه او ظلمونه کړي، مسجدونه او

مدرسې يې و نړولې، په زرهاوو ماشومان، ميرمنې او سړي يې په شهادت ورسول خو دهندوستان علماء بيا هم دخپلو ملي اوشرعي مسؤليتونو څخه لاس په سر نشول، هغوی پرلپسې مسلمانانوته دحالاتو په وړاندې دصبرو استقامت روحيه ورکوي ،د قانوني او حقوقي ازادی نه په استفادې په تعليمي ، اقتصادي او اجتماعي ميدان کې دمسلمانانو رهنمائي خپله شرعي فريضه گڼي،په تعليمي ميدان کې دسرکار تعليمي نصاب اوتعليمي ادارو د شتون سربيره په خصوصي سيکتورکې يې مسلمانانو لپاره جلا تعليمي مراکز، ښوونځي، ليسې اوپوهنتونه هم جوړکړي چې پکې دعصري مضامينو ترڅنگ اسلامي زده کړې هم کېږي او هم يې ددينې علومو دتدريس لپاره په ټول هند کې د مدارسو او جامعاتو يو لوی جال خور کړ چېرته چې ددينې علومو دتدريس په ضمن کې عصري مضامين هم تدريسيږي



دعلماوو د حکيمانه او مدبرانه پريکړو اوکوښښونو په برکت نن دهندوستان په خاوره داسلامي علومو او فنونو لوی، لوی علماء، فقهاء، محدثين او مفسرين شتون لري،څنگه چې دهندوستان دويش نه وړاندې په هندوستان کې عديم النظير علماء موجودو ونن هم داسلامي علومودتعليم، تدريس ، تبليغ او تصنيف په ميدان کې دنوري نړۍ څخه هندوستاني علماء وړاندې دي اوپه وروستيو څولسيزو کې د اسلامي هيوادو دعلماوو نه زيات کتابونه او هم په سلهاوو علمي موضوعاتوباندې څېړنې او تحقيقات د هندوستاني علماوولخواترسره شوي دي.

په دې علاوه لگيا دي دمسلمانانو د اجتماعي مسائلو، خيريه او بشري مرستو په لړ کې متحرک او فعال دي، په خاصه توگه دسود لعنت نه دمسلمانانو دژغورلو لپاره يې ځای په ځای داسلامي بانگ سيستم متعارف کړی، نن هم هلته دارلعلوم ديوبند داسلامي علومو دتدريس ،تعليم، روحانيت اوفقهات نړيوال مرکز دی ،بستي نظام الدين اولياء نن هم دتبليغ جماعت نړيوال مرکزدی، اوپه ټوله نړۍ کې دتبليغي جماعت تنظيمي چاري رهبري کوي او په ټوله نړۍ کې ديو خاموش اسلامي او اصلاحي تحريک په حيث يې خپل فعاليتونه جاري ساتلي اوس هم هلته دحيدر آباد دکن جامعه عثمانيه، دسهارنپور مظاهر العلوم، دلکنو ندوة العلماء، ددهلي جامعه ا مينيه داسلامي نړۍ پيژندل شوي مدارس او جامعات دي او په اکثرو اسلامي هيوادو کې ددې يادو جامعاتو مثال نه مندل کېږي، په نويو معاصرو فقهي مسائلو فقهي تحقيقات او څېړنې دهندوستاني علماوو له لوري دوام لري دا هرڅه په يو داسې هيواد کې چې هلته څه کم يو مليارد متعصب هندوان اکثريت دي، همدا رازدنړۍ ترټولو زيات سودخواره او فراډيان، جادوگراوساحران هم دهندپه ممبي اونورو ښارونو کې دي دفلمي نړۍ ترټولو زيات فلمونه او دفلمونو جوړولو لويې اداري په هند کې دي، او نوري ډول ډول بد اخلاقی او بې لارۍ هلته په پوره شور او قوت سره دوام لري، خوبيا هم دهغه ځای علماء دخپلومسؤليتونو څخه بې پروا اوستړي ندي اونه دخپل شاندار مستقبل نه مايوس بريښي، نن هم د هندپه هرايالت او سيمه کې خدای مکړه که په مسلمانانو باندې کوم طبعي او موسمي ازماينښت يا افت راشي ،سيلابونه راشي يا بل کوم ناورين پيښ شي ،د هغه ځای مسلمانانو د مرستې اوکومک لپاره دارالعلوم ديوبند او د هندجمعيت علماء مشران تر نورو مخکې ورسي او پخپل ټول اخلاص او جذبه دغم ځپلو مسلمانانو لاس نيوی کوي، ان چې قوي حکومتونه هم هغسې لاس نيوی او مرستې نشي۔ کولی ،

که په کومه سیمه یانبار کې دمسلمانانو اوهندوانو ترمنځ ستونزې او مشکلات پیدکېږي ترهرڅا وړاندې هلته علماء اوپه خاصه توګه مولانا ارشد مدني او مولانا محمود مدني ور رسي او دمسلمانانوسره په ځان اومال کومکونه کوي په روغتونونو کې دبې وزلو مسلمانانو سره نغده کومکونه کوي، بډای مسلمانان غریبو او کمزورو مسلمانانو سره مرستو او کومکونوته هڅوي په خاصه توګه هند کې دمسلمانانو عائلي قوانین چې دوامدار دحکومتونو لخوا دتهدید ښکاردي او دلغوه کولو کوښښونه یې کوي هندوستاني علماء په یوغږ او یوځواک تراوسه هیڅ حکومت ندی پرې ایښی چې هغه دي دمسلمانانو عائلي قوانین تغیر کړي

نوپه دې سرسري داستان کې زموږ دهیواد دعلماوو اوعلمي حلقو لپاره سبق پروت دی، که هغوی ورباندې په سړومغزو غورو فکر وکړ ، نوموړته ښتن تعالی داسې هیواد راکړی چې نه پکې دهغسې ننګونو اوستونزو سره مخ نه یو دکومو سره چې هندوستاني علماء لاس و ګریوان دي ،۹۹ سلنه خلک مو مسلمانان دي، په هیوادکې ګڼې ژبې اوتوکمونه نلرو یواځې په څو محدودو ژبو ویونکي لرو ، د کم اقلیت شیعه ګانو پرته نور اکثریت وګړي مو اهلسنت والجماعت احناف دي، فرقوي او مذهبي اختلافونه دنشت په حساب دي، ددیني علومو دزده کړو په لوررجحان او میلان تربل هرهیواد نه زیات دی ،دتاریخ په هر دور کې دعلماوو په قیادت اوفتوا په ملیونو خلکو خپل سرونه داسلام، ایمان او عظیم الشان قرآن څخه د دفاع په لار کې قربان اونذرانه کړي لنډه داچې دبل هرهیواد په پرتله زموږ په هیواد کې دیني ریښې ډیرې ژورې اوقوې دي

نوپکاردی زموږ علماء ددې فرصتونو اوچانسونو څخه دعلمي ارتقاء اواجتماعي اصلاحاتو په لړ کې اعظمي استفاده وکړي ، له ځانو سره دخلکو یوځای کولو لپاره دحکمت او تدبرنه کار واخلي، دبېړنیو پریکړوڅخه ډډه وکړي اوپه قضایاوو کې داساني، مهرباني او عاطفې مسیرته ارجحیت ور کړي، بې ضرورته سختې پریږدي، دفرقوي او مذهبي اختلافاتو اورته دلمن وهونکو لاسونه غوڅ کړي، داسلامي نظام دنفاذ څنګه چې داسلام حکیمانه روح دی ګامونه واخلي په دې لړ کې داسلامي شریعت په اصولو باندې دي هیڅکله کومه سودا یا معامله نکوي هو! په فروعاتو کې دي دزیاتې سختۍ او ټینګار څخه کار نه اخلي او هم دي دهیواد علیا مصالحو اودمسلمانانو دسوکالۍ په پام کې نیولو سره دافغانانو ترمنځ دصلحې او روغې کوښښونه ډیرکړي او دعام ولس ستونزې ، تکلیفونه اوناخوالې دي درک کړي او د هغو دازالې لپاره دي واکمنوته پر ځای او ګټورې مشورې ورکړې څود ګران هیواد ځوریدلي ولسونه اوپرګنې د خپل پاته ژوند راتلونکې شپې ورځې په ډاډ او خوښۍ کې تیرې کړي

## د سختۍ دعا!

په رسول الله ﷺ به چې کله سختي راغله او یا به یې زړه تنګ شو، دا دعا به یې کوله:

«اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ أَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ».

رواه أحمد (۲۷۸۹۸)، وأبو داود (۵۰۹۰)

یا الله! ستا د رحمت تمه لرم، خپل ځان ته مې د سترګو شوریدلو په اندازه هم مه پرېږده، ټول کارونه مې رابرابر کړه، هیڅ حق اله نشته، یوازې ته د عبادت مستحق یې.



# اې انسانه...!

صفي الله "رائد"

پوهېږې دا دومره لویه ښایسته نړۍ یواځې ستا لپاره جوړه شوې!

پـوهېږې دا د ځمکـې پـر مـخ پـه ښایستونو کې را ټول ځلور بېلابېل فصلونه ستا او ستا د لاښه ژوند لپاره برابر شوي!

خـبر یـې چـې د نـړۍ دا رنگارنـگ ښایســتونه، هـوا وې او ښـکلاوې یـواځې او یواځې ستا لپاره چلېږي.

په دې خبر یې چې ستا لپاره پـه دې ځمکه کې څو قسمه میوې پیـدا شـوي! ایا کله دې ټولې شمېرلي؟!

ایا شمارلی یې شې؟ !

پـه دې پـوهېږې چـې د بـاران دا ښایســته دانـه دانـه څـاڅکي سـتا لپـاره پرځمکه را لوېږي؟

شـنه بـوټي زرغونـوي، گيـاوې شـنې کوي، رنگارنگ گلان را ټوکوي ..؟

او له ښایستونو ډکې ویالې، خوړونـه او سیندونه یـواځې سـتا د ښـه ژونـد لپـاره بهېږي؟!

اې انسانه !

کله خو په دې غور وکړه چې ستا لـه وجود څخه مخکې کله چې تـه نـه وې، لمر و، تـه چـې نـه وې سـپوږمۍ، اسـمانونه، سـتوري، ځمکـه، بحرونـه او نـور مخلوقـات شته وو.

"ته چې نه وې دېرې شیان پـه خپلـو چارو بوخت وو"

داسې فکر وکړه که چېرې ته دنیا تـه راغلی وای، خو پـه دنیـا کـې اوبـه نـه وای، روزي نـه وای، لمـر او گرمـي یـې نـه وای، سپوږمۍ او رڼا یې نه وای او بلاخره د ژونـد نـور نعمتونـو څخـه محرومـه وای، ژونـد بـه څومره سـخت او سـتونزمن ؤ او لـه څـومره ستونزو سره به لاس او گریوان وای؟!

"له دې داسې ښکاري چې الله تعـالی ته ددې هرڅه لپاره نـه بلکـې دا هرڅـه سـتا لپاره پیدا کړي"

اې انسانه!

په حال دې افسوس ندی؟؛

چې تـه خپـل قیمتـي وخـت د داسـې شیانو په لټون پسې ضایع کـوې، چـې هغـه هرڅه ستا لپاره پیدا دي.

هو! هرڅه الله تعالی ستا لپاره خو، ته یې د ځان لپاره پیدا کړی یې!

نـو ای انسـانه! تـه لـه ورځـو جـوړ یې؛ چې یوه ورځ تېرېږي ستا یوه برخه هـم ورسره ختمیږي.

حسـن بصـري رحمـه اللـه وایـي : مـا داسـې خلـک هـم لیـدلي دي چـې تاسـو لـه دراهمـو او دنـانیرو سره څـومره مینـه لـرئ هغوی له خپلو وختونو سره تر دې هم زیاتـه مینه لرله.

اې انسانه! له خپل رب څخه دې کله هغـه څـه غوښـتي چـې لـه بنـده څخـه یـې امیدونه او تمناوې لري؟!

کله دې هغه لاسونه خپـل رب تـه پـه دعاگـانو کـې لپـه کـړي چـې بـل تـه یـې د غوښتنې په نیت لپه کوې(نیسې)؟ !

حال داچـې اللـه تعـالی د قرآنکـریم د (سُـوۡرَةُ المؤمن/غَـافر) پـه (۶۰) نمـبر آیـت کې فرمایلي:

)ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ(

یعنې:

لـه مـا نـه یـې وغـواړئ، څـو ستاسـې (غوښتنې) قبولې کړم

نو اې انسانه راشه نور هر څه له هغـه ذات نه وغواړه چې ته یې پیدا کړی یـې، دا لویـه دنیـا یـې پیـدا کـړې، دا لـوی لـوی آسمانونه او پراخې ځمکـې یـې پیـدا کـړي؛ هغه چې په دې لویو لویو اسمانونو ستړی نه شو نو ایا تاته ستا پر رزق در کولو به سـتړی شي؟! نه هېڅکله هم نه !..

ای انسانه!

له لوږې وروسته مړښت، لـه تنـدې وروسـته خړوبېدل، له بې خوبۍ وروسته خوب او له ناروغۍ وروسته روغتیا شته!

ورک شوي به لاره پیداکړي، او زیـار او کوښښ کونکي به د خپلې خوارۍ پایلـه ومومي؛ ځکه په تیارې پسې رڼا راځي:

(فَعَسَـى اللـهُ أَن يَـأْتِيَ بِـالْفَتْحِ أَوْ أَمْـرٍ مِّنْ عِندِهِ. خو لـرې نـه ده، چـې اللـه تعـالی تاسې ته برۍ در په برخه کړي، یـا لـه خپـل لورې نه کومه بله خبره څرگنده کـړي".نـو د ژوند په تنگسۍ او مشکلاتو مه خفه کېږه!

د خپلې روزۍ اندېښنې مه کوه؛ ځکه الله رب العزت فرمايي :

»يا ابن ادم لا تخافن من ذي سلطان ما دام سلطاني باقياً، وسلطاني لا ينفد أبداً، يا ابن آدم لا تخشى من ضيق الرزق وخزائني ملآنة، وخزائني لا تنفد أبداً، يا ابن آدم خلقتك للعبادة فلا تلعب، وضمنت لك رزقك فلا تتعب، فوعزتي وجلالي إن رضيت بما قسمته لك أرحت قلبك وبدنك وكنت عندي محموداً، وإن أنت لم ترضَ بما قسمته لك، فوعزتي وجلالي لأسلطن عليك الدنيا تركض فيها ركض الوحوش في البرية، ثم لا يكون لك فيها إلا ما قسمته لك، يا ابن آدم خلقت السماوات والأرض ولم أعيَّ بخلقهن، أيعيني رغيف عيشٍ أسوقه لك، يا ابن آدم لا تسألني رزق غد، كما لم أطلب منك عمل غد، يا ابن آدم أنا لك محب، فبحقي عليك كن لي محباً«. (الحديث)

ژباړه: ای انسانه!

له هيڅ قدرت او پاچاهۍ څخه مه وېرېږه!

ترهغه چې زما قدرت او پاچاهي موجوده وي او زما قدرت او پاچاهي نه ختمېږي.

اي انسانه!

د خپل رزق او روزۍ له کمېدو څخه مه وېرېږه!

ترهغه چې زما خزانې او نعمتونه موجود وي او زما خزانې خلاصيده نه لري.

ای انسانه!

ته مې دخپل عبادت لپاره پيدا کړی يې، نو شيطانت مه کوه!

ستا د رزق ضمانت مې کړی، نو خپل ځان مه ستړی کوه (يعنې بدنې هڅه وکړه او په زړه توکل ولره، هسې زړه مه پريشانه او ستړې کوه)!

او په خپل عزت او جلال مې دې قسم وي !

که ته په هغه رزق چې مايې ضمانت درکړي او درته درکړی مې دی راضي شوې!

زړه او جسم ته به دې آرام او سکون درکړم، نو هغه وخت به تا منونکی او شکر کونکی ومو.

او هغه رزق چې تاته مې درکړی، که پرې راضي نه شوې، نو په خپل عزت او جلال مې دې قسم وي چې:

د دنيا په رزق او چارو به دې داسې بوخت کړم لکه وحشي حيوانات چې په دښتو کې په خوراک پسې منډې وهي!

په پای کې به هيڅ هم په لاس درنه شي له هغه څه پرته چې ما درته مقرر کړي.

ای انسانه!

ما ځمکه او اسمانونه پيدا کړل او د هغوی په پيدايښت کې ستړی نه شوم .

ته فکر کوې ستا لپاره د يوې ګولې ډوډۍ تيارول به ما ستړی کړي؟

ای انسانه!

زما څخه د سبا ډوډۍ نن مه غواړه، لکه څنګه چې زه د سبا کارونه له تا نه نن نه غواړم.

ای انسانه!

تاسره مينه لرم!

نو زما حق دي چې تاسې ټول له ماسره مينه وکړئ.

## سړی خو جامع الکمالات دی والله که یې بدیل پیدا کړئ

له شهيدانو سره په خپله ملا قات کوي

دافغانستان دتاسيس له نيتي څخه بيا تراوسه پوري سيال نه لري حتی دافغانستان موسس احمد خان ابدالي يې هم شاته غور ځولی دی ، په شپږديرش مليونه انسانانو که هيڅوک هم طرحه نه لري خو دی طرحه لري

سوله هم دده ابتکار ده چې پنځه ځلويښت زره عسکر يې ورته وژلي دي ، ديو مليون کورونو دجوړولو طرحه يې کامیابه شوه چين او هند يې تقليد کوي

ديو مليون کارونو دايجاد طرحه يې هم زبر دسته وه امريکا او برطانيا يې کاپي غواړي

بيکاري يې داسي کنترول کړه چې فقط لس مليونه ځوانان بيکاره دي هغه هم اروپا ته نه تښتي صرف پنځه لکه تښتيدلي دي.

هوايي دهليزونو يې په نړيواله سطحه لويه غوغا جوړه کړه دامريکا دسبسايډۍ يو ډالر يې هم په کې وه نه لګولو

فساد يې دخدای په فضل سره داسي شفاف کړ چې فقط دتلفوني محصولاتو اتيا مليارده افغانۍ تري ورکې دي دانوري روپۍ خو په خزانه کې دي او داسي بنډل بنډل پرتي دي

دده دمغزو له برکته داسي پارلماني انتخابات وشول چې فقط يوه رايه په يونيم سل ډالره معامله شوه ، هغه هم دشفافي داوطلبۍ له لاري

داسي امن او امان وطن ته راغئ چې مه کوه پوښتنه ، صرف چوکونه او بازارونه له غلوسره دي نور نو ټول هيواد مدينه فاضله ده

عصمت قانع ستا په داتور څټ کې ددرخانۍ ترور دغړکي شلومبي درتوی کړم ته يې لانه مني

# پول مالیه بر کریدت کارت‌های شما به کدام سوراخ می رود؟

یوسف ارسلان

اشرف‌غنی، اثری را تحت نام "بازسازی دولت‌های شکست خورده" نوشته و عملاً با همین شعار تند و تیز وارد میدان سیاست و رهبری در افغانستان گشت؛ اما دیری نپایید که در میدان عملی این "دولت‌سازی" به بحران‌سازی تغییر نام داد. از بهبود دسترخوان مردم تا اشتغال‌زایی و کاهش فقر از موضوعات فریادهای کمپاینی او بود، که حالا برعکس از آب برآمده.

غنی که از پرورش‌یافته‌های مکتب سرمایه‌داری است با معیار این نوع طرز تفکر در اوایل حکومتش دست به یک سری اقداماتی زد که فشار بزرگی به جیب، گلو و شکم مردمان فقیر افغانستان وارد ساخت؛ که یکی از آن‌ها وضع مالیات - خصوصاً مالیات ده در صدی بر کریدت کارت‌ها- می‌باشد. هرچند این طرح مورد استقبال قرار نگرفت و پارلمان آن را ردّ کرد ولی اشرف‌غنی و دارودسته‌ی غارت‌گرش به این چورِ آشکار خود چنان پافشاری ورزیدند که حتی درین مورد - خلاف قانون اساسی نافذه افغانستان- دست به صدور فرمان تقنینی زدند. پس دولتی که قوانین خودش را زیرپا می‌کند، مردم را به صورت طبیعی زیرپا خواهد کرد.

از قراین معلوم می‌گردد که به قدرت رسیدن غنی مانند به قدرت رسیدن یک تیم بزرگ مافیایی می‌ماند که روی مافیای حکومت‌های قبلی را سفید نموده و چنان سیستماتیک و کمپیوتری فساد می‌کنند و پول به جیب می‌زنند که حساب کار از کنترول خود شان نیز رفته و بوی گندیده‌یی فساد شان برملا شده است.

یکی از آن نوع پروژه‌ها که فساد آن آشکار شده، سیستم "ریال تایم " است. هدف این سیستم جمع‌آوری شفاف مالیات بر خدمات مخابراتی است، اما با وجود گذشت چند سال از وضع مالیه بر کریدت کارت‌ها هنوز سیستم شفافی برای این کار ایجاد نشده و مردم نمی‌دانند که این پول به کدام دروازه داخل می‌شود. حکومت پس از فریاد و تشویش مردم ازین نوع مالیات به یک‌سَری اقدامات نمایشی زد. وزارت مخابرات قراردادی را درین مورد با یک شرکت آمریکایی به ارزش ۱۱ میلیون دالر بست که کارشناسان امکانات آن را در میان شرکت‌های افغانی به ارزش ۲ میلیون دالر می‌دانستند و معلوم گردید که در قرارداد شرکتی که برای انجام این کار استخدام شده، فساد بزرگی صورت گرفته است.

البته این نوع فساد در نظام سرمایه‌داری یک امر معمول است. چون سرمایه‌داری در اصل یک نظام غارت‌گر است و توسط دزدی ـ جمع‌آوری مالیه ـ به حیات خود ادامه می‌دهد و مقاماتی که پیشه‌ی اصلی شان دزدی است در رأس این نظام قرار می‌گیرند.



باید دانست که مفکوره جمع‌آوری مالیات یک مفکوره راه‌حل دولت‌های غربی برای پیش‌برد امور است که استوار بر وضع مالیات کمرشکن بالای مردم می‌باشد. اشرف‌غنی با چنین طرز فکری راه‌حل‌های غربی را بر جامعه افغانی "Copy-Paste"نموده، پهلوی این‌که در بدل این مالیات و عواید هیچ نوع خدماتی به جامعه عرضه نمی‌کند، چیزی جز بحران و افزایش فقر و بیکاری ببار نیاورده. دولت‌دارن پول‌دار گشته، سرمایه‌داران غنی‌تر شداند و حکومت این شکم‌چربی مافیاها و سرمایه‌داران را یک دست‌آورد دانسته و تحت نام بلند رفتن عواید دولت، به چشم مردم می‌زنند.

این در حالی‌ست که در نظام اسلامی گرفتن مالیات از مسلمانان نامشروع می‌باشد، جز در حالت اضطرار - زلزله، طوفان، جنگ - که آن‌هم بالای پولدارها وضع می‌گردد. در نظام اقتصادی اسلام، مالیه بالای عاید، مصرف و فروش وضع نمی‌گردد، در عوض، اسلام زکات را بر ثروت مسلمانان وضع نموده و آن‌ها را تشویق به صدقات می‌کند. دولت اسلامی منحیث ولی و سرپرست مسلمانان مکلف است تا آنرا بشکل درست آن جمع آوری نموده و به اقشار مستحق آن تادیه نماید. پهلوی این‌که حاکم مسلمان(خلیفه) حق این را ندارد تا خلاف شریعت بر مال مسلمانان و حتی اهل ذمه پولی را مقرر نماید و نانی از گلوی فقیر بزند. برعکس پول قرض‌داری یک مسلمان -که توان پرداخت آنرا ندارد- نیز بدوش حاکم مسلمان می‌باشد. تطبیق نظام اقتصادی اسلام باعث گردیده بود که سده‌ها مسلمانان در حالت بهتر رفاهی قرار داشته باشند و به تکالیف شرعی شان رسیدگی کنند.

طوری‌که در روایات تاریخی در مورد وضعیت زندگی امت اسلامی نقل کرده‌اند که حکمران افریقا در دوره خلافت اسلامی - دقیقاً در آغاز قرن دوم هجری - نامه‌ای به پایتخت دولت اسلامی فرستاد و در باره صدقات و زکات‌های انبوهی که نزد او جمع شده بود، جویای پاسخ شد که با آن‌ها چه کند؟ جواب داده شد: آن‌ها را خرج فقرا و مستضعفان کن! نامه نوشت که: این کار را کرده‌ایم، اما صدقاتی فراوانی آمده است، با آن‌ها چه کنیم؟ جواب داده شد: کسانی را مأمور کن که در شهرها جار بزنند: «هر کس محتاج است نزد والی رود و مایحتاج خود را از صدقات بگیرد!» و عده‌ای را مأمور کن که از فقرا و نیازمندان جستجو کنند؛ زیرا ممکن است کسانی باشند که حیاء مانع مراجعه آن‌ها به والی شود.

والی به پایتخت دولت اسلامی دو باره نامه نوشت: این کار را هم کرده‌ایم، اما باز هم صدقات اضافه آمده است. جواب داده شد: آنها را صرف مصالح عموم مسلمانان کن!

آیا جهان در سرتاسر تاریخ خود چنین وضعی را به خود دیده است؟

در واقع، در سرمایه‌داری تلاش بر این است تا با چگونه با وضع قوانین جیب قشر معلم، مامور، کسبه‌کار و دست‌فروش را غارت کنند، حالانکه در نظام اسلام بحث روی این است تا چگونه مشکلات انسان‌ها به شکل اساسی و انسانی آن حل گردد و جهان معاصر با انواع تجربه‌ها و مکاتب اقتصادی آن نتوانسته است راهکاری بهتر از اسلام را برای حل مشکلات انسان‌ها پیشکش کند.



# د مذاکراتو د ورستي پړاو پای ته رسیدو په اړه د اسلامي امارت د ویاند څرګندونې

د تیرې فبروري میاشتې په ۲۵ مه نیټه له امریکایي لوري سره پیل شوي مذاکرات نن ۱۷ مه ورځ د مارچ په ۱۲ مه نیټه پای ته ورسیدل.

د مذاکراتو په دې بهیر کې په هغو دوو موضوعاتو چې د جنوري په میاشت کې توافق ور باندې شوی و تفصیلي او هر اړخیز بحثونه وشول، هغه دوه موضوعات له افغانستان څخه د ټولو بهرنیو ځواکونو وتل او د نورو په ضرر د افغان خاورې نه کارول و، دا چې ټول بهرني ځواکونه به له افغانستان څخه څنګه او په څومره وخت کې وځي او د وتلو ترتیب به یې څنګه وي؟

همدارنګه له اینده افغانستان څخه به امریکا یان او ملګري یې څه ډول مطمئن کیږي؟ په دې دواړو برخو کې کافي پرمختګ وشو، د اوس لپاره به دواړه لوري په شویو پرمختګونو لا زیات غورکوي، له خپلو مشرانو سره به یې شریکوي او په راتلونکي غونډه کې به چې وخت به یې وروسته د دواړو مذاکراتي ټیمونو په موافقه تعینیږي امادګي نیسي.

د یادونې وړ ده چې په دې غونډه کې په اوربند او دکابل اداري سره په مذاکراتو هیڅ کومه فیصله نه ده شوې او نه هم نور موضوعات په اجنډا کې داخل شوي دي، په دې اړه د ځینو رسنیو راپورونه حقیقت نه لري.

ذبیح الله مجاهد د اسلامي امارت ویندوی

۱۴۴۰/۷/۵هـ ق

۱۳۹۷/۱۲/۲۱هـ ش ــ ۱۲/۳/۲۰۱۹م

Srak Magazine

## د اسلامي امارت سیاسي مرستیال **ملا برادر اخند** حفظه الله د وینا یوه برخه:

مجاهدینو ته مې پیغام دا دی چې الله تعالی په سیاسي او نظامي ډګر کې کامیابي درکړه؛ نو چې غرور او تکبر ونه کړئ، عاجزي وکړئ! د الله تعالی شکر اداء کړئ او د قدرت د هوس پرځای د اسلام او ولس د خدمت فکر خپل کړئ! د ولس مشرانو ته د پلرونو، همزولو ته د ورونو او کشرانو ته د او لادونو په نظر وګورئ. دوی ته مو دا توصیه ده او دا مو ترې غوښتنه ده، چې تکبر، غرور او لویي ورڅخه ونشي او له عوامو سره داسې برخورد وکړي، څنګه یې چې پلار له زوی سره کوي او پر سر د رحم او مهرباني لاس ورتېر کړي.